ننګرهار زراعت پوهنځی

# د کرنیزو محصولاتو بازار موندنه




پوهاند محمد طیب

سي ډي سره

۱۳۹۶

پلورل منع دی

د کرنیزو محصولاتو بازار موندنه

Marketing of Agricultural Products

پوهاند محمد طیب
۱۳۹۶

Nangarhar Agriculture Faculty

Afghanic

Prof Mohammad Tayeb

# Marketing of Agricultural Products



Funded by
**Kinderhilfe-Afghanistan**

with CD

ISBN 978-9936-620-38-4
9 789936 620384

Not for Sale

2017

بسم الله الرحمن الرحيم

# د کرنيزو محصولاتو بازار موندنه

**پوهاند محمد طيب**

**لومړی چاپ**

دغه کتاب په پي ډي ايف فارمټ کې په مله سي ډي کې هم لوستلی شئ:



د کتاب نوم　د کرنیزو محصولاتو بازار موندنه

لیکوال　پوهاند محمد طیب

خپرندوی　ننگرهار پوهنتون، زراعت پوهنځی

وېب پاڼه　www.nu.edu.af

د چاپ کال　۱۳۹۶، لومړی چاپ

چاپ شمېر　۱۰۰۰

مسلسل نمبر　۲۳۴

ډاونلوډ　www.ecampus-afghanistan.org

چاپ ځای　سهر مطبعه، کابل، افغانستان

دا کتاب د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې، په جرمني کې د Eroes کورنۍ یوې خیریه ټولنې لخوا تمویل شوی دی.
اداري او تخنیکي چارې یې په آلمان کې د افغانیک لخوا ترسره شوي دي.
د کتاب د محتوا او لیکنې مسئولیت د کتاب په لیکوال او اړونده پوهنځي پورې اړه لري. مرسته کوونکي او تطبیق کوونکي ټولنې په دې اړه مسؤلیت نه لري.

د تدریسي کتابونو د چاپولو لپاره له موږ سره اړیکه ونیسئ:

ډاکتر یحیی وردک، د لوړو زده کړو وزارت، کابل

تېلیفون　۰۷۵٦۰۱٤٦٤۰

ایمېل　textbooks@afghanic.de



ای اس بي ان　۹۷۸-۹۹۳٦-٦۲۰-۳۸-۴

# د لوړو زده کړو وزارت پیغام

د بشر د تاریخ په مختلفو دورو کې کتاب د علم او پوهې په لاسته راوړلو، ساتلو او خپرولو کې ډیر مهم رول لوبولی دی. درسي کتاب د نصاب اساسي برخه جوړوي چې د زده کړې د کیفیت په لوړولو کې مهم ارزښت لري. له همدې امله د نړیوالو پیژندل شویو معیارونو، د وخت د غوښتنو او د ټولنې د اړتیاوو په نظر کې نیولو سره باید نوي درسي مواد او کتابونه د محصلینو لپاره برابر او چاپ شي.

له ښاغلو استادانو او لیکوالانو څخه د زړه له کومي مننه کوم چې دوامداره زیار یې ایستلی او د کلونو په اوږدو کې یې په خپلو اړوندو څانګو کې درسي کتابونه تألیف او ژباړلي دي، خپل ملي پور یې اداء کړی دی او د پوهې موتور یې په حرکت راوستی دی. له نورو ښاغلو استادانو او پوهانو څخه هم په درنښت غوښتنه کوم تر څو په خپلو اړوندو برخو کې نوي درسي کتابونه او درسي مواد برابر او چاپ کړي، چې له چاپ وروسته د ګرانو محصلینو په واک کې ورکړل شي او د زده کړو د کیفیت په لوړولو او د علمي پروسې په پرمختګ کې یې نېک ګام اخیستی وي.

د لوړو زده کړو وزارت دا خپله دنده بولي چې د ګرانو محصلینو د علمي سطحې د لوړولو لپاره د علومو په مختلفو رشتو کې معیاري او نوي درسي مواد برابر او چاپ کړي.

په پای کې د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمیټې او زموږ همکار ډاکتر یحیی وردک څخه مننه کوم چې د دی کتاب د خپرولو لپاره یې زمینه برابره کړېده.

هیله منده یم چې نوموړې ګټوره پروسه دوام وکړي او پراختیا ومومي تر څو په نیږدې راتلونکې کې د هر درسي مضمون لپاره لږ تر لږه یو معیاري درسي کتاب ولرو.

په درنښت

پوهنوال دوکتور فریده مومند

د لوړو زده کړو سرپرست وزیره

کابل، ۱۳۹٦

## د درسي کتابونو چاپول

قدرمنو استادانو او ګرانو محصلينو!

د افغانستان په پوهنتونونو کې د درسي کتابونو کموالی او نشتوالی له لويو ستونزو څخه ګڼل کېږي. يو زيات شمير استادان او محصلين نويو معلوماتو ته لاس رسی نه لري، په زاړه ميتود تدريس کوي او له هغو کتابونو او چپترونو څخه ګټه اخلي چې زاړه دي او په بازار کې په ټيټ کيفيت فوتوکاپي کېږي.

تر اوسه پورې موږ د ننګرهار، خوست، کندهار، هرات، بلخ، البيروني، کابل،کابل طبي پوهنتون او کابل پولي تخنيک پوهنتون لپاره ۲۵۰ عنوانه مختلف درسي کتابونه د طب، ساينس، انجنيري، اقتصاد، ژورناليزم او زراعت پوهنځيو (۹٦ طبي د آلمان د علمي همکاريو ټولنې DAAD، ۱۴۰ طبي او غير طبي د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې Kinderhilfe-Afghanistan، ٦ کتابونه د آلماني او افغاني پوهنتونونو ټولنې DAUG، ۲ کتابونه په مزار شريف کې د آلمان فدرال جمهوري جنرال کنسولګري، ۱ کتاب د Afghanistan-Schulen، ۱ د صافی بنسټ لخوا، ۱ د سلواک ايډ او ۳ نور کتابونه د کانراد ادناور بنسټ) په مالي مرسته چاپ کړي دي.

د يادونې وړ ده، چې نوموړي چاپ شوي کتابونه د هېواد ټولو اړونده پوهنتونونو او يو زيات شمېر ادارو او مؤسساتو ته په وړيا توګه وېشل شوي دي. ټول چاپ شوي کتابونه له www.afghanistan-ecampus.org ويب پاڼې څخه ډاونلوډ کولای شئ.

دا کړنې په داسې حال کې تر سره کېږي چې د افغانستان د لوړو زده کړو وزارت د (۲۰۱۰ - ۲۰۱۴) کلونو په ملي ستراتيژيک پلان کې راغلي دي چې:

*"د لوړو زده کړو او د ښوونې د ښه کيفيت او زده کوونکو ته د نويو، کره او علمي معلوماتو د برابرولو لپاره اړينه ده چې په دري او پښتو ژبو د درسي کتابونو د ليکلو فرصت برابر شي د تعليمي نصاب د ريفورم لپاره له انګريزي ژبې څخه دري او پښتو ژبو ته د کتابونو او درسي موادو ژباړل اړين دي، له دې امکاناتو څخه پرته د پوهنتونونو محصلين او استادان نشي کولای عصري، نويو، تازه او کره معلوماتو ته لاس رسی پيدا کړي."*

موږ غواړو چې د درسي کتابونو په برابرولو سره د هيواد له پوهنتونونو سره مرسته وکړو او د چپټر او لکچر نوټ دوران ته د پای ټکی کېږدو. د دې لپاره دا اړينه ده چې د لوړو زده کړو د موسساتو لپاره هر کال څه نا څه ۱۰۰ عنوانه درسي کتابونه چاپ شي.

**له ټولو محترمو استادانو څخه هیله کوو، چې په خپلو مسلکي برخو کې نوي کتابونه ولیکي، وژباړي او یا هم خپل پخواني لیکل شوي کتابونه، لکچر نوټونه او چپټرونه ایډېټ او د چاپ لپاره تیار کړي، زمونږ په واک کې یې راکړي چې په ښه کیفیت چاپ او وروسته یې د اړوند پوهنځیو، استادانو او محصلینو په واک کې ورکړو. همدارنګه د یاد شویو ټکو په اړوند خپل وړاندیزونه او نظریات له مونږ سره شریک کړي، تر څو په ګډه پدې برخه کې اغیزمن ګامونه پورته کړو.**

د مؤلفینو او خپروونکو له خوا پوره زیار ایستل شوی دی، ترڅو د کتابونو محتویات د نړیوالو علمي معیارونو په اساس برابر شي، خو بیا هم کیدای شي د کتاب په محتوی کې ځینې تیروتنې او ستونزې ولیدل شي، نو له درنو لوستونکو څخه هیله مند یو تر څو خپل نظریات او نیوکې مؤلف او یا مونږ ته په لیکلي بڼه راولیږي، تر څو په راتلونکي چاپ کې اصلاح شي.

له افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمیټې او د هغې له مشر ډاکتر ایروس څخه ډېره مننه کوو چې د دغه کتاب د چاپ لګښت یې ورکړی دی، دوی تر دې مهاله د ننګرهار پوهنتون د ۱۴۰ عنوانه طبي او غیرطبي کتابونو د چاپ لګښت پر غاړه اخیستی دی.

په ځانګړې توګه د جي آی زیت (GIZ) له دفتر او CIM ( Center for International Migration & Development) څخه، چې زما لپاره یې له ۲۰۱۰ نه تر ۲۰۱٦ پورې په افغانستان کې د کار امکانات برابر کړي وو، هم د زړه له کومې مننه کوم.

د لوړو زده کړو له سرپرست وزیرې پوهنوال دوکتور فریده مومند، علمي معین پوهنمل دیپلوم انجنیر عبدالتواب بالاکرزی، مالي او اداري رئیس احمد طارق صدیقي، د ننګرهار پوهنتون رئیس، د پوهنځیو رییسانو او استادانو څخه مننه کوم چې د کتابونو د چاپ لړۍ یې هڅولې او مرسته یې ورسره کړې ده. د دغه کتاب له مؤلف څخه ډېر منندوی یم او ستاینه یې کوم، چې خپل د کلونو-کلونو زیار یې په وړیا توګه ګرانو محصلینو ته وړاندې کړ.

همدارنګه د دفتر له همکارانو هر یو حکمت الله عزیز، فهیم حبیبي او فضل الرحیم بریال څخه هم مننه کوم چې د کتابونو د چاپ په برخه کې یې نه ستړې کیدونکې هلې ځلې کړې دي.

ډاکتر یحیی وردک، د لوړو زده کړو وزارت سلاکار

کابل، مې ۲۰۱۷

د دفتر ټیلیفون: ۰۷۵٦۰۱۴٦۴۰

ایمیل: textbooks@afghanic.de

## د مولف خبرې:

بازارموندنه له پخوا زمانې څخه د انسانانو ترمنځ وجود درلود خو دوخت په اړدو کې مختلف شکلونه اختیار کړیدی په اولو وختو کې ساده شکل درلود په هر طریقه چې جنس په جنس تبادله روانه وه هغه وخت دخلکو سره کافې پوهه موجوده نه وه او مارکیتنګ چا دعلم په صفت نه پیژنده بازارموندنې بڼې پرمخ تللې شکل نړې ته یوه نوې راغلې فن ده پخوا تولید په تیټه کچه کیده او کم خلک کاراوبار کاوه او دتولیداتو په خرڅلاو کې هم دخلکو سره کومې ستونزې نه وې. خو هغه وخت چې په نولسمه پیړې کې صنعتي انقلاب رامنځ ته شوی ورسره سم د صنعتي او غیر صنعتي تولیداتو د تولید سطح اوچته شوه دنړې دخرڅلاو سوړ مارکیټ په تود مارکیټ بدل شو دا وخت خلک دخپلو محصولاتو دخرڅلاو له ستونزې سره مخامخ شول دوې دخپل مشکل دحل په موخه د مشتریانو تقاضا مطالعه کړه په مشتریانو تاثیر اچوونکې فکتورونه چې مطالعه کړل دوی پیدا کړه چې تولیدات یواځې د تولید د ساحې لپاره نه بلکه هغه خلک چې د تولید د ساحې څخه لرې دی هم دوی تولید ته اړتیا لرې له دې وروسته بازارموندنه خپل د تکامل لړې په چټکې سره پیل کړه او دوخت په تیریدو سره تر نن پرمخ تللې حالت ته راورسیده.

افغانستان یو کرنیز هیواد دی د (۱۰،۲۰،۲۰۱۱) کال د احصایې له مخې کرنه د هیواد په داخلې نا خالصه عاید کې 28% رول لرې چې په دغه سکتور کې تخمین 60% خلک مصروفیت لرې په کال (۱۰،۲۰،۲۰۱۱) کې د افغانستان د قانوی صادارتو اندازه ۵،۳۳ ( میلیون دالر وو چې د صادراتو) 4% عمده برخه یې قالین، وچې میوې 27% طبې بوټې 10% وړې 8% تازه میوې 7% پوستکې 6% او نور مواد 4% تشکیلوې.

افغانستان په کرنه کې زیات متکې دی زیاته اتکا په غلو دانو باندې کیږې کوم چې په کال ۱۰،۲۰،۲۰۱۱ غلې دانې د مارکیټ 77% برخه تشکیلوې، میوه جات، سبزیجات، اود حیوانې تولیدات دهیواد مهم اقتصادې برخه تشکیلوی.

مارکیټ کې د افغانې تولیداتو لپاره خاصتاً وچو میوو او مغزیاتو لپاره قوي تقاضا شتون لرې د افغانستان د تولیداتو مارکیټ د تجارت په ساحه کې نسبت نورو هیوادونو ته ډیر له موسمې مسایلو سره مخامخ دی یعنې د کال په اړدو کې خپل محصول په مسلسل ډول نشې عرضه کولای او همدارنګه افغانې صادارتې توکې باید د (WTO) څخه چې یو با اعتیباره بین المللې تجارتې موسسه ده صحې تصدیق ترلاسه کړې ترڅو عربې او اروپایې مارکیټونو ته لاره پیدا کړې.

متاسفانه مونږ د هیواد د ننه جغرافیوې موقیعت، پیچومو او لازم ترانسپورتې سهولتونه د نه موجودیت له کبله ډیرې ستونزې لرو زمونږ هیواد د پاکستان سره د تورخم بندر، سپین بولدک بندرونه له ایران سره د اسلام قلعه بندر، له تاجکستان سره د شیرخان بندر، له ازبکستان سره د حیرتان بندر او له ترکمنستان د تروغنډې بندر سره ګډ پولې لرو.

افغانستان ګډ شمیر هیوادونو سره لکه پاکستان، هند، جاپان، امریکا، خلیج هیوادونه ایران او منځنې آسیا هیوادونو سره تجارتې اړیکې لرې. قوي تجارتې اړیکې زمونږ پاکستان هیواد سره دی چې ددغه هیواد څخه مونږ وړه، وریجې، غوړې، سمنت، ادویه جات او نور شیان واردو او زمونږ صادرات ذکر شوی

هیوادونو ته انګور، ممیز، بادام، پسته، تازه او وچ سبزیجات، څارویو پوستکی او دولمی قالین، قرقل پوستکی ، طبی ادویه جات او داسی نور شیان تشکیلوی.

لکه چی لیدل کیږی افغانستان له اتو لارو څخه دا اوسپنی پټلی دتیریدو امکانات لری چی د تجارتی او اقتصادی له لحاظ ډیری ارزښت لری لکه:

1 - د بدخشان له لیاری چین هیواد ته
2 - دتورخم له لیاری پاکستان هیواد ته
3 - دخوست له لیاری کوهاټ ته
4 - دکندهار له لیاری کویټی ته
5 - دنیمروز له لیاری زاهدان ایران ته
6 - دهرات له لیاری مشهد ښارته
7 - د مزارشریف له لیاری ترمز ښار ازبکستان هیواد ته
8 - د شیر خان بندر له لیاری تاجکستان هیواد ته

چی ددغه پټلیو په تمدیدو سره زمونږ تجارتی ستونزی تر زیات ممکن حد پوری مرفوع کیږی.

په درناوی

پوهاند محمد طیب

بسم الله الرحمن الرحیم

دمننې څرګندونه:-

هیڅ کتاب یواځي د مولف په هلوځلو سرته نه رسیږي بلکه د علمي همکارانو باارزښته علمي او اکادمیک مرستې په نتیجه دکتاب علمي وزن او مسلکي موثریت پراختیا مومي او معیاري خصوصیتونه پیدا کوي ددغه کتاب په تکمیلولو کې د کرنیز اقتصاد او توسعې ددیپارتمنت استادان، دکرنې د پوهنځي اداري او علمي هیات مسلکي علمي همکاري دیادولو ور دي.

غواړم چې د ښاغلي پوهاند محمد اشرف (یادګاري) د کابل پوهنتون د اقتصاد دپوهنځي ریس او ښاغلي پوهندوی دوکتور غلام نبي سیدي (بلوچ) څخه چې د کتاب په مسلکي برخه کې ماسره همکاري کړیدي اوددوی د مسلکي معلوماتو په اساس په کتاب کې د مسلکي معلوماتو په برخه کې په کافي اندازه مثبت بدلون راغلي دي دزړه له تله مننه وکړم.

دغه کتاب چې پنځه لس څپرکي لري او دسلو جدولونو او ګرافونو څخه زیات پکې لیکل شویدي د محترم محمد حارث (ساؤ) د ژبې او ادبیاتو د انګلیسي دیپارتمنت لیسانس او محترمه بصیره (میاخیل) دکتاب په تایپ کې د مخلصانه هلو ځلو په نتیجه کې د اکمال مرحلې ته ورسیده غواړم دهغو څخه دزړه له کومي د مننې څرګندونه وکړم.

د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمیټې (Kinderhilfe-Afghanistan) او د هغه له مشر ډاکټر اېروس څخه مننه کوم چې زما د کتاب د چاپ مالي لګښت یې پر غاړه واخیست. همداراز له ښاغلي ډاکټر یحیی وردګ څخه هم مننه کوم چې د دې کتاب د چاپ لپاره یې زمینه برابره کړېده.

دغه کتاب چې دکرنیزو تولیداتو د بازارموندنې په نوم یادیږي دمسلکي معلوماتو په وړاندې کولو سره د مارکټنګ د خدماتو او وظایفو په مورد، دعرضې اوتقاضا په مورد، دمحصولاتو د خرڅلاو د چینلونو په مورد، اوهمدارنګه دمحلي ملي او بین المللي مارکیټونو دشرایط په اړوند چې محققین، محصلینو، مولدینو او تاجرانو لپاره یو ښه رهنمود ګڼل کیږي او همدارنګه د افغانستان دمیوه جاتو د مارکیټنګ په اړوند چلینجونه او د حل لیاري پکې څیړل شویدي محترم وطنوالو ته وړاندې کړم امیدوار یم چې ددې کتاب په مرسته وکولای شي خپل مسلکي مشکل تر یوه حده پوري حل کړي.

په درناوي

الحاج پوهاند محمد طیب

دکرنې د پوهنځۍ د کرنیز اقتصاد او توسعې ددیپارتمنت استاد

بسم الله الرحمن الرحیم

## تقریظ

کتاب تحت عنوان «دکرنیزومحصولات مارکتینګ» اثرمحترم پوهاند محمد طیب استاد دیپارتمنت اقتصادزراعتي پوهنځي زراعت پوهنتون ننګرهارکه از منابع معتبرعلمي و کارهاي تحقیقاتي خودشان سرچشمه ګرفته است وبراي اینکه در بخش بازاریابي محصولات زراعتي کارمیکند یک رهنمود قوي ومطمین میباشد.

مولف این اثر که قبلاً مدت هفت سال بصورت عملي در بخش مارکتینګ محصولات زراعتي ریاست کوپراتیف هاي وزارت زراعت کار کرده است وازمدت سي سال به اینطرف در تدریس مضمون مارکتینک محصولات زراعتي درپوهنځي زراعت پوهنتون ننګرهارمصروف تدریس میباشد ،ودر این بخش مقاله هاي علمي و پروژه هاي تحقیقاتي و کتب درسیمضمون مارکتینک محصولات زراعتي را براي لیسه هاي زراعت و انستیتوت هاي زراعت افغانستان تالیف نموده است جداً قابل قدر میباشد.

موصوف در بخش مارکتینګ محصولات زراعتي اعضاي کوپراتیف ها تجربه کافي دارد واز پرابلم هایکه در مورد فروش محصولات اعضاي کوپراتیف هاواستفاده جوي هایکه از طرف دلالان وکمیشن کاران درین عرصه وجود داشته است عملاً آنرا احساس نموده و آګاهي دارد وراهاي حل همچوپروبلم ها را بصورت عملي در این اثر علمي پیشنهاد نموده است.

تدریس این مضمون که در پنج رشته صنف چهارم پوهنځي زراعت تدریس مي ګرددااهمیت آنرا خوبترمنعکس میسازد و براي محقیقین، اهل مسلک، باغداران و محصلین یک رهنمود خوب بحساب میرود.

دراخیرتالیف این کتاب را براي محترم پوهاندمحمد طیب تبریک ګفته و در آینده در راه خدمت به وطن موفقیت هاي مزید از خداوندمتعال برایش خواهانم.

با احترام

پوهاند محمد اشرف یادګاري

استادپوهنځي اقتصادپوهنتون کابل

بسم الله الرحمن الرحيم

## تقريظ

اهميت بازاريابي محصولات زراعتي در حيات اقتصادي دهاقين مولدين محصولات زراعتي از اهميت خاص برخورداراست. تا زمانيكه دهاقين بازار فروش مناسب نداشته باشندنميتوانند محصولات خودرا به نرخ مناسب بفروش رسانند.

عدم موجوديت ذخيره خانه ها ، دستگاهاي پروسس محصولات زراعتي، عدم آشناي زارعين با مسايل بازاريابي،و عدم آگاهي از تقاضاي مصرف كننده گان در ماركيټ هاي داخلي و خارجي، پاين بودن كيفيت محصولات از لحاظ رنگ، شكل، قواره،درجه پختگي و صحي بودن آن از جمله عواملي اند كه موجب پاين آمدن نرخ آن در ماركيټ مي گردد.

دراين كتاب بالاي پرابلم هاي موجود در ساحه بازاريابي و راه هاي حل آن بصورت همه جانبه روشني انداخته شده است.مساعد ساختن زمينه بازاريابي محصولات زراعتيبراي مولدين ميوه جات كه از جمله اقلام مهم صادراتي كشور ما محسوب ميگرددو همچنان بلند بردن مهارت مسلكي توليدكنندگان محصولات زراعتي و جلب توجه دولت در امر استحكام بخشيدن بنيه ماليوتخنيكي مولدين محصولات زراعتييک امر ضروري پنداشته شده تا ازين طريق بنياد اقتصادي زارعين كشورقوي و مستحكم گردد.اقليم گواراي افغانستان در توليد ميوه جات خوش ذايقه و سبزيجات باكيفيت رول مثمر دارد و در موجوديت دستگاهاي پروسس ميوه جات سبزيجات مطابق معيار هاي بين المللي زمينه صادرات ميوجات و سبزيجات ما را به ماركيتهاي بين المللي مساعد ميسازد.

تاليف اين كتاب بحيث يک رهنمابراي محصلين پوهنځي هاي زراعت و اقتصاد و كسانيكه با مسايل بازاريابي محصولات زراعتي سروكاردارند مهم بوده كه در متن آن موضوعات مربوط به مسايل بازاريابي از نقطه توليد شروع الي نقطه آخر استهلاک(مصرف كنندگان) كافي و دلچسپ ارايه گرديده است.

اينجانب تاليف اين كتاب را به مولف آن محترم پوهاند محمد طيب استاد ديپارمنت اقتصاد زراعتي و توسعه پوهنځي زراعت تبريک گفته از خداوند برايش موفقيت هاي مزيد آرزومي كنم.

باالاحترام

پوهندوي دوكتورغلام نبي(سيدي بلوچ)

استاد ديپارتمنت اقتصاد زراعتي پوهنځي زراعت پوهنتون ننگرهار

**سریزه:**

افغانستان یو کرنیز هیواد دی چې ٪ 60 وګړي يې په کرنه بوخت دي، او کرنیز سکتور په ملي اقتصاد کې ستره ونډه لري چې په اټکلي ډول ۳۰٪ ناخالص ملي عايد د دې سکتور څخه لاس ته راځي، په دې هېواد کې د کرنیزو محصولاتو کرل په عنعنوي توګه جريان لري، او د يو واحد توليدي سکتور څخه د نورو هيوادونو په پرتله کم حاصل ترلاسه کېږي چې سمون ته يې ځانګړې پاملرنه په کار ده.

زمونږ بزګران د غذايي موادو په توليد بوخت دي، مګر متأسفانه دوی په خپله د غذايي موادو له کمښت، سؤ تغذيې، ناروغۍ، بې سوادۍ او نورو ډول ډول ستونزو سره مخامخ دي. پورتنۍ فکتورونه زمونږ پر ملي اقتصاد ناوړه اغيزه لري او د ټولنيزې ودې او پرمختګ په مقابل کې خنډ ګرځي، له دوی سره مازاد توليد ډير لږ او يا د نشت سره برابر دی، او د مارکيټ له چارو بې خبره پاتې دی، ځينې بزګران د خپلې انفرادي پانګې د لرلو له کبله ښايي ډير غوره حاصل لاس ته راوړي دا چې دوی په څه ډول حاصل په عايد بدلوي او په کوم مارکيټ کې يې څه وخت او په څه نرخ پلورلی شي، دا خبره د هغوی له مسلکي پوهې څخه لرې ده.

محتکرين، جلايان د مولدينو محصول د مارکيټ له نرخ څخه په ټيټه بيه اخلي او پر مصرفوونکي يې کله چې اندازه د عرضې په مارکيت کې نزول وکړي، په لوړه بيه خرڅوي.

زمونږ ميوه جات چې ګاونديو هيوادونوته صادريږي، هلته بيا له سره بسته بندي کېږي او په بارجامو کې د خپل هيواد نوم ورباندې ليکي او د هغوی د توليد په نوم خارجي مارکيټونو ته صادريږي. زمونږ ځينې سبزيجات کله يې چې په مارکيټ کې د عرضې اندازه زياته شي، او نرخ نزولي حالت غوره کړي. ګاونديو هيوادوته په قاچاقي شکل وړل کېږي، او د تقاضاً د زياتوالي په وخت کې بير ته افغانستان ته واردېږي، او درې چنده زيات پر موږ بېر ته پلورل کېږي.

په هيوادکې د سبزيجاتو او ميوه جاتو د پروسيس د دستګاه د زوړوالي او نشت والي له کبله محصول په ډير ټيټ نرخ خرڅيږي. او کله کله خوسا کېږي، د مثال په توګه ځينې وخت د يو من رومي بانجانو نرخ د جلال آباد په مارکيت کې ۱۰ افغانۍ او کله چې د عرضې اندازه کميږي، يو من تر ۴۰۰ افغانيو پورې پلورل کېږي چې ستر توپيرونه په نرخونو کې ژور فکر او کارې عمل ته ضرورت لري، دا ستونزې بايد حل شي تر څو د مولدينو په اقتصادي حالت کې بدلون راشي او په

نتیجه کې په ملي عاید کې مثبت تحول او تکنالوژیکي بدلون رامنځ ته کړئ. چې دا کار د میوې د بازار موندنې په چارو کې د مولدینو او مصرفوونکو لپاره مسلکي روزنې او عملي ښودنې ته ضرورت لري.

حکومت باید له مولدینو سره د مارکیټ په اړه تخنیکي او مالي مرستې وکړي او د مولدینو د محصول لپاره په خارجي مارکیټ کې مناسب بازار پیدا کړي.

د افغانستان میوه جات په طبعي ډول فوق العاده خوند لري او د میوې د پروسیس په دستګاووکې تخنیکي اصلاحات راوستل. د بین المللي معیارونو پر اساس سورت او بسته بندي کوي او د افغاني میوه‌جاتو لپاره په بین المللي نندارتونو کې ځای پیدا کوي چې خارجې مارکیټونه له افغاني میوه جاتو سره آشنا شي، او د مولدینو لپاره د بازار د تقاضاً په باب مسلکي کورسونو ایجادول او داسې نور مثبت اقدامات هغه عوامل دي چې د هیواد میوه جات په بین المللي مارکیټوکې د نورو هیوادو له میوه جاتو سره سیالي کولای شي او دا ډول بریا زمونږ پر ملي اقتصاد باندې فوق العاده مثبت تأثیر کوي.

په درناوي
پوهاند محمد طیب
د ننګرهار پوهنتون د کرنې پوهنځي د کرنیز اقتصاد او توسعې څانګې استاد

# فهرست

## ځلورم فصل

## پینځم فصل

## شپږم فصل



## اووم فصل

## اتم فصل



## نهم فصل



## لسم فصل

## يوولسم فصل

## دولسم فصل



## دیارلسم فصل

## څوارلسم فصل



## پینځلسم فصل

بسم الله الرحمن الرحیم

# لـومـړي فصل

## عمـومي معلـومات

۱ - **مارکیټنګ**:ټول اقتصادي فعالیتونه چي دجنس په اړوند دتولید دنقطي څخه ( فارمونه او فابریکي) څخه شروع کیږي او اخرین مستهلک ته رسیږي دمارکیټنګ څخه عبارت دي.

۲ - **مارکیټنګ**:عبارت دجنس دانتقال څخه دي چي دتولید دنقطي څخه شروع کیږي په معین وخت په مطلوب شکل اومعین نرخ مصرف کوونکي ته رسیږي.

**مارکیټ**:عبارت دهغه ځاي څخه دي چي پلورونکي او اخیستونکي دخرید اوفروش په اړوند یوبل سره ملاقات کوي او فیصلي ته رسیږي.

**دبازاریابي دساحي فعالیت**:جمع اوري دمعلوماتو او تحلیل دبازار مخکي ددي څخه چي عرضه کونکي جنس بازارته عرضه کړي په لاندي موضوعاتو کي باید معلومات ترلاسه کړي.

**الف: دنرخونو په اړوند معلومات دیخواني نرخونو په ملاحظه تصمیم نیولي شوچي:**

۱- کوم محصول باید تولید شي؟

۲- څه وخت نبات وکرل شي؟

۳- کوم مارکیټ لپاره وکرل شي؟

۴- څه وخت جنس مارکیټ ته عرضه شي؟

۵- په کوم شکل جنس مارکیټ ته عرضه شي؟

**ب: عرضه کونکي دخرڅلاو دکانالونو په اړوند معلومات ترلاسه کړي:**

ټول محصولات په مختلفو چینلونو دتولید دنقطي څخه تر اخرین مصرف کونکي پوري خپل مراحل تیروي ځیني چینلونه لنډ ځیني پیچلي او ځیني اوږده مراحل لري جنس په لاندي چینلونو مصرف کونکي ته رسیږي.

۱- دمولد څخه مستقیم مصرف کونکي ته

۲- دمولد څخه پرچون فروش او دهغه څخه مصرف کونکي ته

۳- دمولد څخه عمده فروش بیا پرچون فروش او بالاخره مصرف کونکي ته

۴- دمولد څخه نماینده دعمده فروش، بیا عمده فروش، بیا پرچون فروش او په اخر کي مصرف کونکي ته

۵- دمولد څخه دستګاه پروسس ته، بیا خارجي مارکیټونو ته ،عمده فروش ته ، پرچون فروش ته ، او مصرف کونکي ته

او همدارنګه جنس په ځینو نورو چینلونوکي هم وړاندي کیداي شي لکه:

۱- مولد خپل جنس محلي مارکیټونو کي خرڅوي

۲- مولد خپل جنس کمیشن کارانو باندي خرڅوي

۳- مولد خپل جنس عمده مارکیټونو باندي خرڅوي

۴- مولد خپل جنس دستګاه دپروسس باندي خرڅوي

**دبازاریابي اهمیت دمصرف کونکي اومولدینو له نظره:**

**مصرف کونکي** :مصرف کونکي په ښارونو کي په مختلفو وظایفو مصروفیت لري ځیني ددولت مامورین دي، ځیني دوکانداران دي، په تخنیکي مسایلو مصروف دي او ځیني نور مختلف وظایف سرته رسوي دوي دنورو مصرفو کونکو په شان ډوډي ، وریجي، چاي، بوره اونورو شیانو ته ضرورت لري او دمصروفیت له کبله دوي وخت نلري چي دغذایي مواد داخیستو په خاطرخپله وظیفه پریږدي او دښار څخه شل کیلومتره لري تولیدي ساحي ته لاړشي او دهغه ځاي څخه غوړي، صابون، چاي، بوره اونور ضرورتونه رفع کړي.

**مولدین**:دمولدینو لپاره مارکیټنګ په دي خاطر اهمیت لري چي که چیري خپل محصولات مارکیټ ته عرضه نکړي ددوي محصولات په کلي اوبانډوکي چه هلته ټول مولدین اوسیږي او ددغه اجناسو لپاره تقاضا وجود نلري بنا جنس هلته نه خرڅیږي او دوي مجبوردي چي خپل جنس مارکیټ ته راوړي چیرته چي مصرف کونکي شتون لري چي داکار هم دمولد په ګټه اوهم دمصرف کونکي په ګټه تمامیږي.

**دمستهلیکینو دتقاضا انعکاس مولدینو ته:**

دمصرف کونکو تقاضا مولدینو لپاره درهنما حیثیت لري چي خپل تولیدي پلانونه دمصرف کونکي په خوښه ترتیب کړي چي داکار دمارکیټنګ اساس او بنیاد تشکیلوي مثلاً که چیري مونږ دبازار څخه یوه قطي دمومن غوړي اخلو داپه دي معني ده چي مونږ مومن د غوړیو فابریکي ته د یو قطي غوړیو د تولید فرمایش په اینده کال کي ورکوو ځکه چي مصرف کونکي دپرچون فروشانو څخه غوړي ترلاسه کوي او پرچون فروشان دعمده فروشانو څخه او عمده فروشانو، دغوړیو دفابریکي څخه هرکال دمصرف کونکي دتقاضا په اساس چي دغه تقاضا دپرچون فروشانوله طرفه چي دکال په اوږدوکي ثبت کړي دي صورت نیسي.



**مارکیټنګ یوه پیچلي، مولد، اوګټوره پروسه ده:**

الف: مارکیټنګ پیچلي پروسه ده هغه کسان چي دمارکیټنګ په چینلونو کي کارکوي باید پوه شي چي

۱- څه تولید کړي؟

۲- دکوم مارکیټ لپاره یي تولید کړي؟

۳- په کوم شکل یي عرضه کړي؟

۴- څه وخت یي عرضه کړي؟

۵- دنرخونو په اړوند معلومات ولري؟

۶- دمارکیټنګ دظرفیت په باره کي معلومات ولري؟

۷- دنورو تولیدي دستګاوو او فارمونو په باره کي معلومات ولري

۸- دتولیدي دستګاه او مارکیټ دفاصلي په باره کي معلومات

۹- دخلکو دعاداتو، کلتور، عقیدي، او عوایدو په اړوند معلومات ولري

۱۰–دعرضه کونکي دساحي دتولیدي ظرفیت په باره کي معلومات ولري

۱۱- دعرضي او تقاضا په اصولو پوهه ولري

۱۲- دګمرکي مقرراتو او بین المللي مارکیټونو داصولو په اړوند معلومات ولري

**ب: مارکیټنګ یوه مولده پروسه ده:** دمارکیټنګ په کانالونو کي چي دتولید د نقطي څخه شروع او تراخري مستهلک پوري رسیږيیوشمیر زیاتو کسانو لپاره دکار زمینه مساعدوي مثلا کمیشنکاران، ترانسپورتیشن اومخابراتي وسایل ، پروسس کونکي، عمده فروشان، پرچون فروشان، دذخیري او ګودامونو لپاره ضرورت پیداکړي مثلا په امریکي کي۱۶۰۰۰ تصدي دغذایي موادو دراټولولو وظیفه لري۳۱۰۰۰ دپروسس دستګاوي چي غذایي مواد پروسس کوي۳۴۰۰۰ عمده فروشان ۳۲۵۰۰۰ پرچون فروشان چي په هره برخه کي  په سلهاوکسان په کار مصروف دي او دخلکو لپاره دکارزمینه مساعدوي

**ج: مارکیټنګ یوه ګټوره پروسه ده:**

کله چي جنس دتولید دساحي څخه داستهلاک ساحي ته انتقالیږي دجنس په توزیع کي څلور اساسي موضوعات په نظرکي نیول کیږي

۱- دمحل ګټورتوب

۲- دوخت ګټورتوب

۳- دشکل ګټهورتوب

۴- دملکیت ګټهورتوب

۱ - **دمحل ګټهورتوب**:دتولید په ساحه کي داستهلاک دنقطي په پرتله مقدار دتقاضا ډیر کم وي نولاژمه ده چي جنس هغه ځاي ته انتقال شي چي تقاضا ورته موجود وي مثلا ختېکي په مزارشریف کي ، اناریه کندهارکي، انګوریه کندهار، شمالي، اوهرات کي چي تولیدي ساحي دي دجلال اباد، بامیان، کنړ، لغمان اونورولایتونه په تناسب تقاضا ورته کم وي بنا جنس باید دتولید ساحي څخه استهلاک ساحي ته انتقال شي چي هلته ورته زیاته تقاضا موجوده ده چي داکار هم دمولد په ګټه اوهم دمصرف کونکي په ګټه ده.

۲ - **دوخت ګټهورتوب**:څرنګه چي کرنیز محصولات دکال په یو محدود زمان کي تولیدیږي اومارکیټ ته عرضه کیږي اودموسم په وخت مقدار دعرضي مارکیټ ته زیات صورت نیسي چي دنرخونو دتنزیل سبب ګیږي، ددي کار دمخنیوي په خاطر جنس باید په ګودامونو اویا ذخیره خانو کي ذخیره شي کله چي دجنس لپاره په مارکیټ کي دتقاضا پیدا شوه په تدریج سره مارکیټ ته عرضه شي چي داکاریوطرف مصرف کونکي تقاضا ته مثبت ځواب وائي او له بله طرفه دنرخونو دنوساناتو څخه مخنیوي کوي.

۳ - **دشکل ګټهورتوب**: کله چي دحاصلاتو موسم نزولي حالت غوره کوي چي حتا دمارکیټ دانتقال مصارف هم نشي پوره کولاي نوپدي خاطر چي دمحصولاتو دضایعاتو اوخساراتو څخه مخنیویوشي نولاژمه ده چي میوه جات اوسبزیجات پروسس شي یعني په جوس، مربا، اچار، روب تبدیل شي چه دغه کار دپروسس دستګاه دبرق ورسیږي نرخونه په تدریج سره په موجودیت کي حتمي اوضروري دي چي په قوطیو اوبوتلونو کي ځاي پرځاي شي ترڅو دغه پروسس شوي اجناس په جذاب اوښکلي بارجامو، مرتبانونو، قوطیو او بوتلونو کي بسته بندي شي ښکلي لیبل په کي نصب شي چي دمصرف کونکي توجه ځانته جلب کړي او دکال په اوږدو کي دمصرف کونکي تقاضا ته مثبت ځواب ووایي.

۴- **دمصرف کونکي خصوصیت**:هغه کسان چي دمارکیټنګ په چینل کي کارکوي هغوي باید دمصرف کونکي په خصوصیاتو باندي پوه شي

**الف**: **دمصرف کونکو دشمیر په اړوند**:باید معلومات ولري چي څومره کسان په ښارکي ژوند کوي پدي خاطر چي مصرف دنفوس یا مصرف کونکي د استهلاک منشأ ده تولید داستهلاک په خاطر صورت نیسي که چیري مصرف یا استهلاک نه وي تولید مفهوم نلري پدي خاطرچي دمحصول دخرڅلاو امکانات پیداشي دنفوسو دشمیر په مورد چي په ښار کي څومره کسان ژوند کوي څومره خوراکي موادو ته ضرورت لري اوهمـــــــدارنګه دنفوسو دترکیب په اړوند (نارینه، ښځینه، ماشومان، ځوانان، لویان) دمعلوماتوجمع آوري ضروري امر ګڼل کیږي.

**ب: دمذهبي عقايدوکلتور اوعنعناتو په مورد معلومات ولري چې:**

۱- څوفیصده مسلمانان په ښارکي ژوند کوي

۲- څوفیصده هندوان په ښارکي ژوند کوي

۳- څوفیصده دنورومذاهبو اوادیانو پیروان په ښارکي ژوند کوي.

**ج: دنفوسو دقبیلو اوملیتونو په مورد معلومات ولري چې:**

۱- څو فیصده پښتانه دي

۲- څو فیصده ازبکان دي

۳- څو فیصده بلوچان، پشه یي ، اونورستانیان دي

**د: دښاري اوکلیوالي خصوصیتونو په مورد معلومات:**څرنګه چې دښاراوسیدونکي او دکلي خلک دلباس، خوراک اوسلیقي سره څه ناڅه توپیر لري باید دهغوي دسلیقي او ذوق مطابق اجرات وشي.

**هـ: دنفوسو دعاید په اړوند معلومات ولري:** هغه کسان چې لوړ عاید لري دهغوي مصرف دخوراک اوپوشاک په لحاظ نظر هغو کسانو ته چې کم عاید لري زیات تفاوت اوتوپیر لیدل کیږي هغه کسان چې زیات عاید لري دهغوي کم فیصد دعاید په غذایي موادو مصرفیږي اوهغه کسان چې کم عاید لري دهغوي زیات فیصد دعاید په غذایي موادو مصرفیږي.

**و: دنفوسو سن یا دعمر ترکیب**:دتقاضا تنوع دنفوسو دعمر پوري څه ناڅه اړه لري مثلا ځوانان دسلیقي په لحاظ ماشومان سره فرق کوي ماشومان دځوانانو په مقایسه دخوراکي شیانو په اړوند مختلف ذوق او اشتها لري ځوانان دتفریحي وسایلو په اړوند نظر ماشومانو ته کاملا فرق او توپیر لري.

**ز :دنفوسو دمصرف طریقه**:هغه کسان چې زیات عاید لري دهغوي کم فیصد د عاید په غذاي موادو مصرفیږي اوزیات فیصد ددوي د عاید دلوکسو شیانو په خریداري مصرف کیږي اودکم عاید لرونکي کسانو زیاته فیصدي دعاید ، په غذایي موادو مصرفیږي او کمه فیصدي دعاید ځانته ذخیره کوي.

**دعاید او مصرف جدول په مختلفو ګروپونو کي**

| classes | Income per month | % of income spendingin food | Monthly consumption in food in AFS |
|---|---|---|---|
| Poor | 4,000/AFS | 75% | 3,000/AFS |
| Middle | 10,000/AFS | 50% | 5,000/AFS |
| Rich | 80,000/AFS | 37.5% | 30,000/AFS |
| Upper | 200,000/AFS | 22.5% | 45,000/AFS |

دجدول په ملاحظه غریبي کورني دخپل عاید ٪۷۵ چي تخمیناً ۳۰۰۰ افغاني کیږي هره میاشت په غذاي موادو مصرف کوي او سرمایداره کورني یواځي خپل ٪۵، ۲۲ فیصده دعاید چه ۴۵۰۰۰ افغاني کیږي او ۱۵ برابره دغریبي کورني په نسبت زیات مصرفوي او متباقي ۷۸ فیصده خپل عاید دلوکسو شیانو په خریداري مصرفوي.

**دکرنیزو محصولاتو مولدین**:دکرنیزوتولیداتومولدین،دتولیدي ساحي په لحاظ په دوو برخوویشل شویدي.

الف: گذاروي مولدین یا دهقانان Subsistence Farmers

ب: تجارتي مولدین یا دهقانان Commercial Farmers

**الف: گذاروي دهقانان**:هغه کسان دي چي کمه څمکه لري اودومره تولید کوي چي ددوي گذاره وشي اوخپل مازاد په محلي مارکیټ کي خرڅوي، داکسان دمارکیټ دحالاتو څخه خبر ندي اونه پوهیږي چي څه تولید کړي، څه وخت تولید کړي، اوهمدارنگه دعرضي اوتقاضا په مورد معلومات نلري زیاتره په عنعنوي سیستم خپل کرنیز فعالیتونه پرمخ بیایي

**ب: تجارتي مولدین یا بزګران**:**دتجارت** په منظور جنس تولیدوي اوددوي دضرورت په اړوند اوهمدارنگه دعرضي اوتقاضا په اړوند کافي معلومات لري دمصرف کونکي په خصوصیاتو باندي پوهیږي چي هغوي څه غواړي، په کوم وخت کي یي غواړي اوهمدارنگه اکثره مبتکرین دي او ددوي کرنیز فعالیتونه دنوي تکنالوژي په اصولو جریان لري اوهمیش دمارکیټ په اړوند دوي سره معلومات موجود وي اودپروسس دستگاه سره هم دخپل اجناسو دپروسس کولوپه خاطر تماس لري.**دهغه کسانو څخه عبارت دي چي دکر ساحه یي پراخه او دتجارتی شکل لری.**

### په افغانستان کی د بازاریابی یا مارکیټنګ په اړوند پرابلمونه:

دافغانستان دمناسب اقلیم په خاطر زمونږ سبزیجات او میوه جات دطبعي خوند اوذایقي له لحاظه ډیر عالي خصوصیت لرونکي دي سره ددي بیا هم په بین المللي مارکیټونوکي دنورو هیوادونو دمیوه جاتو په مقایسه کي په ټیټه بیه خرڅیږي چي پدي کي مختلف عوامل رول لري چي ځیني په لاندي ډول عبارت دي:

۱- دسرکونو خرابوالي

۲- دترانسپورتي وسایلو زوړوالي اوخرابوالي

۳- دکافي گودامونو اوذخیره خانو نه موجودیت

۴- دمولدینو عدم معلومات دمارکیټنګ دتقاضا په اړوند

۵- دمحل گټورتوب، دشکل گټورتوب، او همدارنگه دوخت گټورتوب په اړوند عدم معلومات

۶- دپروسس ددستگاه کموالي اوزوړوالي

۷- دافغاني میوه جاتو دمعرفي په خاطر دنندارتونونو نشتوالي

۸- ضعیف پروسس، ضعیف بسته بندي او درجه بندي

۹- دمولدینو دمحصولاتو دخرڅلاو په مورد عدم تضمین او اطمینان

## مولدین په مارکیټ کي درقابتونو په اړوندباید معلومات ترلاسه کړي

۱- مولدین باید معلومات ولري چي محصول دکومي منطقي څخه بازارته راځي

۲- مولدین باید معلومات ترلاسه کړي چي په هره منطقه کي دتولید ساحه څومره ده

۳- مولدین باید معلومات ترلاسه کړي چي نورځایونه خپل محصول په کوم وخت مارکیټ ته وړاندي کوي

۴- مولدین دنوروځایونودمحصول دکیفیت او کمیت په اړوند معلومات ترلاسه کړي ترڅو هغوي سره رقابت وکړي

**د مارکیټ یا بازار سیستم**:

بازار یو ټولنیز نظام دي چي هدف یي دتجارتي معلوماتو سرته رسول او دکافي اسانتیاوبرابرول دمصرف کونکي لپاره فعالیت کوید بازار هدف دادي چي دهري ټولني دهغوي دموجوده امکاناتو په چوکاټ کي آسانتیاوي رامنځ ته کړي اوډیرمهم عناصرئي په لاندي ډول دي

۱- **تولیدونکي**:دهغه کسانو څخه عبارت دي چي دټولني دضرورتونو درفع کولو په منظور د جنسونو په عرضه کولو او خدماتوکي مصروفیت لري.

۲- **اخیستونکي**:دهغه کسانو څخه عبارت دي چي داشیاوَمصرف کونکي دي.

۳- **منځګړي**:دهغه کسانو څخه عبارت دي چي دبازار په چینلونو کي دتولید دنقطي څخه تر استهلاک نقطي پوري داجناسو په انتقال، پلورل او پیرودلو کي رول لوبوي لکه کمیشن کاران، دلالان، پرچون فروشان، او عمده فروشان.

۴- **تسهیلاتي اوخدماتي اداري**:دهغه موسساتو څخه عبارت دي چي دمحصول په انتقال، ذخیره، پروسس، اشتهارات، بیمه او ګمرکي موضوعاتو کي فعالیت کوي

**دمارکیټنګ موثریت**:هر مثبت بدلون چي دمارکیټنګ دمصارفو دکموالي سبب ګرځي غیر له دي چي دمحصول په کیفیت کي کوم منفي بدلون رامنځته شي دمارکیټنګ موثریت ګڼل کیږي. که چیري دمارکیټنګ په مصارفو کي تقلیل او کموالي راشي اودهغه په نتیجه کي جنس خپل کیفیت له لاسه ورکړي داکار دمارکیټنګ دناکامي سبب ګرځي

**دمارکیټنګ موثریت په دوه ډوله دي**:

۱- تخنیکي موثریت

۲-اقتصادي موثریت

۱- **تخنیکي موثریت**:په تخنیکي موثریت کي کوښښ کیږي چي دمارکیټنګ مصارف ښکته راشي چي دهغه مصارف دمحصولاتو په راټولولو، بسته بندي، دمحصولاتو په انتقال، دمحصول په پروسس کي صورت نیسي چي دجنس په کیفیت کي مثبت بدلون راځي مګرمصارف دمارکیټنګ باید زیات نشي.

۲-**اقتصادي موثریت**: پدي موثریت کي کوښښ کیږي چي دمارکیټ دعرضي او تقاضا او همدارنګه دمحل مفیدیت، دشکل او وخت مفیدیت په نظر کي نیولو سره جنس په ښه نرخ خرڅ شي داکار دمارکیټنګ داطلاعاتو او مخابراتو په ذریعه ترسره کیږي اومولدین پدي پوهیږي چي څه تولید کړي، په کوم مقدار تولید کړي، کوم مارکیټ لپاره تولید کړي، څه وخت او په څه شکل تولید کړي، دخلکو تقاضا دجنس لپاره په کوم حالت کي قرارلري، دمارکیټ ظرفیت څومره دي، دکومي ساحي څخه په کومه اندازه جنس مارکیټ ته داخلیږي همدارنګه دخلکو دعوایدو په اړه معلومات ولري، دخلکو دعلاقي او سلیقي په اړوند معلومات ولري او دامعلومات ولري چي خلک دکوموشیانو سره زیاته علاقه لري.

## ۳- **مولدین دګمرکي مقرراتو او اصولو په اړوند معلومات لاسته راوړي**:

۱- دګمرکي مقرراتو او بین المللي تجارت په اړوند ځان اشنا کړي اوهمدارنګه دصادراتو او وارداتو دتجارتي معلوماتو په اړوند معلومات ترلاسه کړي

۲-همدارنګه دنرخونو، مصارفو، تجارتي رقابتونو په اړوند پوره معلومات ترلاسه کړي که چیري مولدین دپورتنیو موضوعاتو په اړوند خپل معلومات تکمیل کړل وروسته له هغي څخه په خپل تولیدي پلان باندي کارکوي چي دده په پلان کي باید لاندي شیان شامل وي.

### -**دتولیدي ساحي په مورد هم معلومات ترلاسه کړي**:

- په کومه اندازه جنس مارکیټ ته عرضه کړي.
- دمولدینو دشمیر په اړوند معلومات ترلاسه کړي.
- عرضه دتقاضا په اساس صورت ونیسي.
- باید پوه شي چي مصرف کونکي پروسس شوي او یا غیر پروسس شوي میوه جات غواړي.
- دذخیري اوګودام په مورد چي جنس څه وخت اوپه کوم شکل ذخیره شي معلومات ولري.

### ۲- **دجنس دخرڅولو په اړوند پلان**:

- دجنس انتقال دتولید دساحي څخه ترمارکیټ پوري.
- دانتقال مصارف په ( کشتي کي، طیاره کي، ریل کي).
- دجنس دکیفیت اوکمیت په اړوند.

### ۳- پولي مصارفو په اړوند پلان:

- دپروس، بسته بندي، او ترانسپورت د مصارفو سنجول.
- دبیمي اوګمرک دمصارفو پلانول او سنجول.
- دموادو دذخیره کولودمصارفو سنجش.

### ۴- دبشري منابعو په اړوند معلومات مولدین دمارکیټنګ په اړوند معلوماتو ته ضرورت:

- مولدین داسي جنس تولید کړي چي دتجار او مصرف کونکي ضرورتونه اوتقاضا مرفوع کړي.
- مولدین دمصرف کونکو دتقاضا سره سم جنس مارکیټ ته عرضه کړي.
- عاقلانه تصمیم نیول، دپلان مطابق تولید کول، او په مناسب وخت مارکیټ ته عرضه کول دمولدینو موفقیت او کامیابي په ګوته کوي.
- څرنګه چي فارمونه دمارکیټ څخه لري پراته دي او مولدین دمارکیټ دتقاضا څخه نه خبرېږي باید پدي اړوند جدي اوسي اوهمیش دمارکیټ دحالاتو څخه باخبروي چه څه تولید کړي اوڅه وخت یي مارکیټ ته عرضه کړي.
- مولدین خپل جنس باید هغه مارکیټ ته عرضه کړي چي تقاضا ورته موجوده وي چي داکار دموبایل، تیلفون، او فکس له لاري صورت نیسي.

### ۵- مارکیټنګ مولدینو ته مشوره ورکوي چي:

- مولدین باید هغه جنس تولید کړي چي دمارکیټ تقاضا ورته موجوده وي.
- محصول دمارکیټ دظرفیت مطابق عرضه شي.
- محصول دکیفیت له لحاظه دنورو جنسونو په پرتله برتري ولري او دښه خصوصیت لرونکي وي.
- محصول هغه وخت وکرل شي ترڅو دضرورت په وخت کي مارکیټ ته عرضه شي.
- محصول په هغه ډول خرڅ شي چي مطمین او اقتصادي وي.
- دمحصول بسته بندي دمصرف کونکي دخواهش په اساس صورت نیسي.

### ۶- مارکیټنګ مولدینو ته مشوره ورکوي چي

- څه تولید کړي؟
- څومره تولید کړي؟
- کوم جنس تولید کړي؟
- څه وخت تولید کړي؟
- چیرته خرڅ کړي؟
- څه وخت یي خرڅ کړي؟

په کوم مارکيټ کي خرڅ کړي؟

- په کوم شکل اوبارجامي سره يي بسته بندي کړي؟

**د بازاريابي محيط**:

هغه کسان چي دبازاريابي په چينلونو کي کارکوي دمحيط د مختلفو عواملو ترتاثير لاندي راځي چي دغه عوامل اجتماعي يا ټولنيز عوامل، فرهنګي عوامل، اقتصادي عوامل، رقابتي عوامل، اوتکنالوژيکي عوامل دي.

۱- **ټولنيز او فرهنګي عوامل**:ټولنيز او فرهنګي عوامل دبازاريابي په فعاليتونو باندي قوي تاثير غورځوي لکه دښار دنفوسو شمير، ژبه، دين، مذهب، فرهنګ چي يو مهم عنصر ګڼل کيږي چي دټولني دافرادو غوښتنه او تقاضا منعکس کوي.

۲- **اقتصادي عوامل**: دغه عوامل دمولدينو دتوليدي فعاليتونو په سيستم کي فوق العاده تاثير غورځوي، هغه ځايونو کي چي دخلکو عايدات زيات وي هغوي دښه اوبا کيفيته غذا تقاضا کوي او هغه کسان چي لږ او کم عايد لري دهغوي زيات فيصدي دعايد په غذايي موادو پکاروړل کيږي چي بي کيفيته او ارزانه وي.

۳- **رقابتي عوامل**:نوي تکنالوژي دتوليد په پروسس، دسته بندي، او په توليد چاروکي چي د مصرف کونکي دتقاضا سره سم جنس عرضه کوي دزاړه تکنالوژي په پرتله په کم وخت اولوړ ستندرد معياربرابروي.

# دوهم فصل

## دمارکيټنګ خدمات اووظايف

دبازاريابي وظايف او خدمات دتوليدي فعاليتونو يوه مهمه برخه تشکيلوي چي دچټک توليد دپروسي او توزيع لپاره زمينه برابروي چي په نتيجه کي دمصرف کونکي دخوښي اورضايت سبب ګرځي، که چيري دبازاريابي وظايف اوخدمات په ښه ډول اوموثر شکل خپل فعاليت سرته ونه رسوي اقتصادي سکتور به ښه رونق ونلري چي دغه خدمتونه اووظايف داقتصاد په سکتور کي خورازيات اهميت لري چي په لاندي ډول تشريح کيږي.

١- دمحصول جمع اوري ٢- دمحصول انتقال ٣- دمحصول بسته بندي

۴- سورت اودرجه بندي ۵- پروسس ۶- ذخيره

١- **دمحصولاتو راټولونه**: کرنيز محصولات په مختلفو ځايونو او مختلفو فارمونو کي توليديږي دادبازاريابي وظيفه ده چي دغه محصولات دمختلفو فارمونو څخه راټول کړي محلي مارکيټونوته انتقال اوبيا ولايتي مارکيټونو او بلاخره مرکزي مارکيټونو ته دتوزيع په خاطر ورسوي.

جمع اوري دمحصول، دمحلي تاجرانو په واسطه محلي مارکيټونو ته انتقاليږي او دمحلي مارکيټونو څخه ولايتي مارکيټونو ته اودهغه ځاي څخه مرکزي مارکيټونو ته دتوزيع په خاطر انتقاليږي او دمرکزي مارکيټونو څخه دتوزيع په خاطر پرچون فروشانو باندي خرڅيږي اوپرچون فروشان جنس مصرف کونکي باندي خرڅو

لاندي رسم دجنس توزيع اودجنس انتقال دمحلي مارکيټونو څخه عمده فروشي مارکيټونو ته تمثيلوي.




٢- **ترانسپورت اومخابرات**:انتقال د محصول د توليدي ساحي څخه استهلاکي نقطي ته دبازار موندني په پروسه کي داهميت له لحاظه ددماغ حيثيت لري ترانسپورت وظيفه لري چي جنس دتوليدي ساحي څخه ښارونوته چيرته چي

مصرف کونکي اوسيږي انتقال کړي که چيري وسايل دانتقال اوسرکونه مجهز نه وي، جنس په خورا مشکل نقطه داستهلاک ته به ورسيږي او تقاضا سره سم مارکيټ ته به ونه رسيږي او جنس دتوليد په محل کي بي لدي څخه چي خرڅ شي پاتي کيږي او خوسا کيږي او مولدين اقتصاداً متضرر کيږي جنس دتوليد په محل کي ډيره ارزانه وي اوپه مارکيټ کي فوق العاده تقاضا جنس لپاره موجوده وي همدارنګه دمخابراتو اهميت دمارکيټنګ په چينل کي دپام وړ ده چي بايد مولدين دمارکيټ دوضعي او دتقاضا په اړوند کافي معلومات ولري چي کوم مارکيټ په کوم مقدار په کوم وخت کوم جنس ته ضرورت لري چي داکار دموبايل، فاکس او تيليفون په واسطه صورت نيسي که چيرته دمارکيټ په مورد کافي اطلاعات موجودنه وي اومولدين خپل جنس په داسي وخت مارکيټ ته انتقال کړي چي مولد بايد داقتصاد له لحاظه متضرر نشي دجنس انتقال دتوليدي ساحي څخه تر پرچون فروشي پوري د مارکيټنګ عمده مصارف تشکيلوي.

په اوسني حالاتو کي دمجهزو سرکونو اومجهزو ترانسپورتي وسايل چي دايرکنډيشن سيستم سره عياردي چي ډير سريع سرعت او ارزان دي چي په موډرن تکنالوژي ترانسپورتي مشکلات ترزيات حد پوري حل شوي دي موجوده تکنالوژي اجناس په کم وخت په ارزانه بي له ضايع څخه په ښه ترتيب دمارکيټ دتقاضا سره سم جنس مطلوب ځاي ته رسوي.

## دنوي انتقالاتي وسايلو خصوصيتونه:

۱- ډير ګړندي او سريع

۲- محفوظ اوبي خطر

۳- بي له کوم ضايعاتو جنس انتقالوي

۴- په مناسب بيه جنس انتقالوي

۵- دايرکنډيشن سيستم سره عياروي

۶- په هرډول شرايطو کي فعال وي

## دترانسپورتي وسايلو ډولونه:

A. ځمکني

B. بحري

C. هوايي

۱- **ځمکني ترانسپورت**:پدي ډول ترانسپورتي وسايلو کي واړه او غټ موټرونه، ريل ګاډي، ميترو او پايپ لاينونه شامل دي

۲ - **بحري يا سمندري وسايل دترانسپورت**:لوي اوکوچني تجارتي کشتي دي چي په زرهاوټنه جنس د يو هيواد يا ديو براعظم څخه بل براعظم تجارتي بندرونوته انتقالوي چي دبحري بندرونو څخه دريل ګاډي او لوي ګاډي په واسطه ښارونو ته انتقاليږي.

۳- **هوايي ترانسپورت**:يدي ډول ترانسپورت کي جنس په سرعت سره مطلوب ځاي ته بي له دي چي جنس ته کومه صدمه ورسيږي او خراب شي رسوي.

۴- **سورت او درجه بندي**:دزراعتي محصولاتو سورت او درجه بندي هم مولد لپاره اوهم مصرف کونکي لپاره ګټورتماميږي.مثلاً که خرڅونکي اول درجه او دوهم درجه محصول سره په يوکريټ کي واچوي او ګډ کړي او يا خراب جنس يا خوسا ميوه يا سبزي، سالم جنس سره په يو کريټ کي ګډ کړي اويا خراب جنس دکريټ په بيخ اوښه جنس کريټ په سرکي واچوي داکار نه يواځي سالم ميوه خرابوي بلکه دمشتري اعتماد دمارکيټ څخه کميږي درجه بندي بايد دميوه جاتو او سبزيجاتو درنګ، خوند ، حجم، پاکوالي ، نازکوالي، کلکوالي او دقواري له مخي په نظر کي ونيول شي او همدارنګه دمصرف کونکي لپاره داسي شرايط برابرشي چي دمحصول په انتخاب کي دهغه رضايت او خوښي خوندي وساتل شي په سورت کي خوسا ، ناروغ او خراب محصول دښه محصول څخه بيل وساتل شي ترڅو سالم او روغ محصول متضرر نشي.مخکي له دي چي جنس درجه بندي شي بايد جنس سورت شي په دي معني چي خوسا ، ناروغ او خراب جنس دښه جنس روغ او سالم جنس څخه بيل شي تر څو سالم او روغ جنس متضرر نشي.

په لاندي مثال کي د کشمش درجه بندي ښودل کيږي.

۱- اول درجه کشمش يا select چي (8-12) ملي متر قطر لري.

۲- دوهم درجه کشمش ياMidget چي (5-7) ملي متر قطر لري.

۳-دريم درجه کشمش ياSmall چي د 5 ملي متر څخه کم قطر لري

**نمونه ګيري**: دڅو بوجيو څخه يو کيلو ګرام په اندازه نمونه اخيستل کيږي

**A** په يو کيلو ګرام سمپل کي .1000 gr

1000 gram = 400 gr select

= 300 gr midget

= 200 gr small

= 100 gr deficit

1000 gr

**په 1000 kg کشمش کي دمختلفو درجو اندازه**:

**B په زر کيلوګرام(1000 kg)**

$$\text{select} = \frac{1000\ x.4}{1} = \mathbf{400\ kg}$$

$$\text{midget} = \frac{1000\ x.3}{1} = 300\text{ kg}$$

$$\text{small} = \frac{1000\ x.2}{1} = 200\text{ kg}$$

$$\text{Deficit} = \frac{1000\ x1}{1} = 100\text{ kg}$$

C **د فیصدی په لحاظ: په زر کلیلو گرام کی 400 کیلو گرام** select

Select = 1000 = 400

100 = x

$$x = \frac{100\ x\ 400}{1000} = 40\%$$

midget **په زر کیلو گرام کی 300 کیلو گرام** $midget = \frac{100\ x\ 300}{1000} = 30\%$

small **په زر کیلو گرام کی 200 کیلو گرام** $Small = \frac{100\ x\ 200}{1000} = 20\%$

Deficit **په زر کیلو گرام کی 100 کیلو گرام** $Deficit = \frac{100\ x\ 100}{1000} = 10\%$

40% + 30% + 20% + 10% = 100%

**دسورت او درجه بندي اهمیت**:سورت اودرجه بندي مصرف کونکي ته جرت ورکوي چي دخپل خوښي جنس مارکیټ څخه په مناسب بیه ترلاسه کړي اود مصرف کونکي اعتماد دمارکیټ په نسبت زیاتیږي.

۱- دمیوه جاتو او سبزیجاتو درجه بندي د محصول درنگ، قواري او جسامت دیووالي سبب کیږي

۲- دخرڅلاو پروسه ښه اسانه کیږي

۳- دتقاضا دزیاتوالي سبب کیږي

۴- دمشتري اعتماد زیاتیږي او محصولات په زیاته پیمانه خرڅیږي

۵- دکم عاید کسانو لپاره پروسه ددرجه بندي ګټه رسوي ترڅو دخپل مالي توان په اندازه د محصول څخه استفاده وکړي

۶- په دغه پروسه کي دنرخونو موثریت لوړیږي او مستقیم اړیکي د محصول په کیفیت کي رامنځ ته کیږي

۵- **بسته بندي**:دمحصول بسته بندي دبازاریابي دمهموخدماتو دجملي څخه شمیرل کیږي کله چي مصرف کونکي وغواړي چي جنس ترلاسه کړي د محصول ټول مشخصات لکه مقدار، وزن، درجه، ترکیبي اجزا، دتولید ځاي او نور

ټول خصوصيتونه پکي ليکل شوي دي چي ددغه معلوماتو په اساس جنس خريداري کوي بسته بندي دمحصولاتو دخوندي ساتلو په خاطر صورت نيسي چي دانتقال او ذخيري په وخت کي محصولات ته زيان ونه رسيږي اود محصول کيفيت محفوظ پاتي شي او دخوساکيدو او زخمي کيدو څخه مخنيوي وشي دهر محصول لپاره دمحصول دماهيت په نظر کي نيولو سره په مختلفو بارجاموکي بسته بندي کيږي.

لکه په بوتلونو، قطي، پاکټ، کارتن، کريټ، صندوق، بوجي ..... او داسي نور

دبسته بندي څخه هدف دادي چي جنس په اساني سره مارکيټ ته انتقال شي، دجنس مشخصات په بارجامه کي ليکل شوي وي که چيري ټول معيارونه په بسته بندي کي رعايت نه شي او دمشتري دتقاضا سره سم بسته بندي ونه شي، خريدار دجنس په اخيستو کي چندان علاقه مندي نه ښايي.

**دبسته بندي مفيديت**:

۱- محصولات چي بسته بندي شي ترزيات وخت پوري ساتل کيږي اود جنس کيفيت دانتقال اوذخيري په وخت محفوظ پاتي کيږي.

۲- دتوزيع په وخت کي سهولت برابروي خصوصاً چي په واړه بارجاموکي بسته بندي شوي وي.

۳- محصول په اساني سره انتقاليږي.

۴- دمحصول هويت اومشخصات پکي معلوميږي.

۵- دبسته بندي په وخت کي يو شمير کارګرانو لپاره دکار زمينه برابرول.

۶- دبسته بندي په اساس دجنس هويت د انتقال اوذخيري په وخت کي تشخيص کيږي.

۷- جذاب اوښکلي بارجامه دخريداري دتشويق سبب ګرځي چي جنس خريداري کړي.

۸ - دفروشاتو حجم زياتيږي چي د مولدينو ګټه پکي متصورده.

**دبسته بندي اقسام**:دکرنيزو محصولاتو بسته بندي دمحصول دنوعيت پوري اړه لري او دخريدارد ذوق او علاقه مندي پوري مربوط کيږي چي په کوم شکل بارجامه کي جنس بسته بندي شي او لاندي عوامل دجنس په بسته بندي کي رول لري

۱- ايا خريدار جنس په کوچني بارجامو کي غواړي او يا په غټو بارجامو کي

۲- ايا محصول په کوم شکل ذخيره کيږي ( دمحصول نوعيت پوري مربوط ده)

۳- ايا محصول په کوم ډول ترانسپورتي وسايلو کي حمل اونقل کيږي

۴- ايا بسته بندي په پلاستيکي ، کاغذي يا شيشي بارجامو کي بسته بندي کيږي

۵- ایا جنس لومړي په واړه او وروسته په غټو بارجامو کي بسته بندي کیږي

۶- ایا بسته بندي وروسته د رفع حاصل څخه صورت و نیسي اویا وقفه ولري

۷- بسته بندي دورځي په کوم وخت کي باید صورت ونیسي

۶- **پروســـس Process**: دمارکیټنګ دمهمو خدماتو دجملي څخه شمیرل کیږي مخکي له دي چي خام جنس مصرف کونکي ته ورسیږي هغه باید پروسس شي دپروسس دتصدیو وده او انکشاف دیو هیواد داقتصادي ودي او انکشاف پوري اړیکي لري دپرمخ تللي هیوادونو خلک زیات مصروفیت له کبله په خپل کور کي پخلي لپاره فرصت نلري او اکثرآ تیاره پاخه غذا درستورانت څخه اخلي یا اکثرآ دپروسس شوي شیانو څخه استفاده کوي.

له همدي کبله د اقتصادي انکشاف او ودي سره سم د پروسس صنعت وده کوي اود کرنیزو محصولاتو اود حیواني محصولاتو د پروسس لپاره ډیره اړتیاوي پیداکیږي پروسس شوي شیان نه یواځي اضافي ارزښت په محصول کي ایجادوي بلکه دذخیري او ساتني قابلیت په محصولاتو کي ایجادیږي دکرنیزو محصولاتو په پروسس کي ( میوه جات او سبزیجات) دوخت اوشکل مفدیت یا ګټورتوب پکي ایجادیږي څرنګه چي سبزیجات اوتازه میوه جات او لبنیات په کم وخت کي خوسا کیږي بناً ددغه کار دمخنیوي په خاطر باید پروسس شي ترڅو دخوسا کیدو څخه مخنیوي وشي.

پروسس دهغه عملي څخه عبارت دي دجنس په فزیکي حالاتوکي بدلون راوړي او اضافي ارزښت پکي ایجادوي.

مثلاً غنم په وړه ، پنبه په تیوکر ( لباس) تازه میوه جات په وچو میوه جاتو، شربت، مربا، تازه سبزیجات په سلاد، اچار، چکني، روب اوداسي نور مثالونه.

**دپروسس مفیدیت**:

- دمحصول په کیفیت کي ښه والي رامنځته کوي
- دکارزمینه دپروسس په دستګاهو کي خلکو ته پیداکوي
- دمحصولاتو دخوسا کیدو څخه مخنیوي کوي
- پروسس شوي اجناس انتقال اوذخیره په اساني سره صورت نیسي
- پروسس شوي شیان دمصرف کونکي توجه ځان ته جلبوي
- پروسس شوي شیان په دوامداره توګه ساتل کیږي
- پروسس شوي شیان دنرخونو دنوساناتو څخه مخنیوي کوي
- پروسس شوي شیان دکال په اوږدوکي دمشتري تقاضاته مثبت ځواب وایي

## **کرنيزو محصولاتو دپروسس ضرورت اواهميت**:

پروسس په ميوه جاتو، سبزيجاتو، لبنياتو او حبوباتو کي داقتصادي ودي اوانکشاف له نظره زيات اهميت لري خصوصاً دمولدينو په ژوند کي مثبت بدلون راوړي پروسس دلاندي موضوعاتو په خاطر ضروري اوداهميت وړدي

۱- پروسس شوي شيان په مارکيټ کي په موفقانه توګه عرضه کيږي او مولدينو ته ګټه راوړي

۲- کريډټيي منابع د پروسس دتصديو سره اړيکي ايجادوي

۳- دکرنيزو محصولاتو پروسس دهيواد د صنعتي کيدو اساس ګڼل کيږي

۴- پروسس شوي شيان ددولت عوايدو باندي مثبت تاثير اچوي

۵- پروسس شوي شيان دکال په اوږدو کي عرضه کيږي اودنرخونو دنوساناتو څخه مخنيوي کوي

۶- پروسس شوي محصولات دخوند له لحاظه با کيفيته وي اوپه اساني سره عرضه کيږي

**دپروســس دستګاه**:دپروسس دستګاه دکار دحجم له لحاظه په دوه ډوله دي.

۱- کوچني دستګاه دپروسس

۲- لوي دستګاه دپروسس

۱- **کوچني دستګاه دپروسس**: دادستګاه دپروسس دفعاليت له لحاظه په کمه پيمانه جنس پروسس کوي او په اساني سره يوځاي څخه بل ځاي ته انتقاليږي.

۲- **لوي دستګاه دپروسس**: دادستګاه دپروسس دفعاليت له لحاظه په زياته پيمانه جنس پروسس کوي او په سل هاو کسان پکي کار کوي او په زياته اندازه محصول په يو ساعت کي پروسس کوي.

مثلاً دمزارشريف دپروسس فابريکه چي د پنبي څخه صابون، غوړي، پروسس کيږي د بوري دستګاهو پروسس د مزارشريف دسري فابريکي پروسس، دکندهار دميوي د پروسس دستګاه، د سمون او پشتون د مميزو د پروسس د ستګاه چي يو شمير زيات کسانو لپاره د کارزمينه مساعده کړي ده.

**دپروسس دستګاهو پرابلمونه**:څرنګه چي کرنيز محصولات موسمي خصلت لري يعني دکال په اوږدوکي يواځي دموسم يا فصل په وخت کي پيدا کيږي او مقدار دعرضه يي په مارکيټ کي زيات وي او په تدريج سره جنس د مارکيټ څخه کميږي کله چي جنس په مارکيټ کي زيات وي دستګاه د پروسس په کامل ظرفيت فعاليت کوي او زيات مقدار جنس پروسس کوي او کله چي دجنس مقدار د عرضه په مارکيټ کي کم وي د ستګاه د پروسس توقف کوي ځکه چي ورته خام موادنه پيدا کيږي ترڅو خپل فعاليت ته دوام ورکړي بنآ لاندي ستونزي سره مخامخ کيږي.

**دپروسس دتصديو ستونزي**:

۱- د اومه موادو کموالي

۲- دکافي پانگي اچوني نه موجوديت

۳- عدم امنيت

۴- دبرق نشتوالي

۵- ضعيف منجمينټ

۶- د کافي گودامونو او ذخيره گاهو نه موجوديت

۷- فالتو سامان نه موجوديت

۸- دسرکونو خرابوالي

۹- دترانسپورتي وسايلو کموالي

۱۰- د پروسس دستگاهو لري والي دتوليدي ساحي څخه

**د پروسس دتصديو پرابلمونه**: معمولاً لاندي پرابلمونه د افعانستان د پروسس په تصد يو کي ليدل کيږي.

۱- تخنيکي پرابلمونه

۲- د خريد پرابلمونه

۳- د خرڅلاو پرابلمونه

۱- **تخنيکي پرابلمونه**:دا پرابلمونه په دوه برخو ويشل شوي دي.

۱- د ظرفيت پرابلم

۲- داستخدام پرابلم

۱- **د ظرفيت پرابلم**:د خام موادو په موجوديت د پروسس د ستگاه په کامل ظرفيت کار کوي دا هغه وخت ممکن ده چي د خام موادو عرضه په مارکيټ کي زياته وي کله چي خام موادو عرضه په مارکيټ کي کم شي د پروسس دستگاه په کامل ظرفيت دخام موادو کموالي په سبب کارنشي کولاي.

۲- **د استخدام پرابلم**:کله چي دستگاه په کامل ظرفيت کاروکړي ضرورت دبشري قواوو استخدام ته محسوس کيږي او کله چي دستگاه د پروسس د خام موادو دکموالي له کبله په کامل ظرفيت کارونکړي په هغه صورت کي دستگاه د پروسس نشي کولي چي بشري قوا استخدام کړي او مجبور وي چي خپل کارگرانوته ځواب ورکړي.

۳- **د خرید پرابلم**:پدي خاطر چي دستګاه د پروسس د خامو موادو کمبود سره مواجه نه شي نو پکار ده چي د خامو موادو قرارداد د مولد سره مخکي صورت ونیسي ترڅو هغوي خپل خام مواد دوي ته ورکړي اوپه بل چا باندي خرڅ نکړي په غیر دهغي دستګاه د پروسس د خام موادو په کمبود سره مخامخ شي.

۴- **خرڅلاو پرابلم**:زمونږ محصولات په بین المللي مارکیټونو کي ددوه علتونو له کبله په ښه نرخ نه خرڅیږي.

۱- په تولیدي ساحه کي دتخنیکي پرابلمونو موجودیت

۲- د پروسس دستګاهو کي ځني ستونزي غیر معیاري

چي هر یو دتولید په ساحه کي او هم د پروسس په دستګاهو کي دځني عواملو له کبله په بین المللي مارکیټونو کي دخارجي محصولاتو سره سیالي نشي کولاي.

۷- **ذخیـــره**: دمارکیټنګ یوه بله وظیفه د کرنیزو محصولاتو ذخیره کول دي چي داکار دفزیکي خدماتو له جملي څخه شمیرل کیږي کله چي محصولات د تولیدي دستګاه څخه حرکت کوي ترڅو چي مصرف کونکي ته رسیږي تریو وخت پوري ذخیروي خدماتو ته ضرورت لري د ذخیري عملیه د مارکیټنګ په ټولو مراحلو کي دتولیدي دنقطي څخه تر اخرین مستهلک پوري یو ضروري عملیه ګڼل کیږي څرنګه چي کرنیز محصولات موسمي خصلت لري او همدارنګه ځني محصولات دخوسا کیدو خصوصیت لري بناً ددغه محصولاتو ذخیره په سړوخونو کي ترڅو چي ورته بازارپیدا شي دمحصول د ضایعاتو څخه مخنیوي کوي او همدارنګه دذخیري دعملي په واسطه کولي شوچي جنس د کال په اوږدو کي د مصرف کونکي تقاضا ته مثبت ځواب ووایو او دنرخ دنوساناتو څخه مخنیوي وشي مولدین عمده فروشان او پرچون فروشان خپل جنس تریو موقت وخت پوري ذخیره کوي.

**د ذخیري مثبت تاثیرات**:

۱- دنرخونو استقرار

۲- دخرڅلاو سهولت

۳- داخیستونکي تشویق

۴- دقرض اخیستلو امکانات

۵- دخطراتو څخه مخنیوي

**د ذخیروي دستګاهو ډولونه**:

۱- **عامه ذخیره ګاه**: (شخصي ذخیره ګاه او دعامه ګټي په خاطر د کرایي په مقابل کي تري کاراخیستل کیږي).

۲- **شخصي ذخيره ځاه**:(شخص پوري مربوط ده چي يواځي هماغه مشخص کسان تري استفاده کوي).

۳- **دولتي ذخيره ځاه**: (دولتي ملکيت ده لکه سيلو، ددوايي ډيپو، دګمراکاتو ګودامونه چي تاجران د کرايي په مقابل کي تري استفاده کوي).

**د ذخيره هدف**:هغه ميوه جات او سبزيجات چي زرخوسا کيږي د لاندي مقاصدوپه خاطر بايد ذخيره شي.

۱- تازه ميوه جات، سبزيجات او لبنياتو د خوساکيدو څخه مخنيوي کوي.

۲- دميوه جاتو او سبزيجاتو کيفيت ساتل ترڅو د مصرف کونکي توجه ځان ته جلب کړي.

۳- د کال په اوږدو کي مصرف کونکي لپاره جنس عرضه کوي.

۴- د نرخونو دنو ساناتو څخه مخنيوي.

۵- جنس د تقاضا مطابق مارکيټ ته عرضه کيږي.

## ۱ – جمع کول يا راټولونه:

يوزيات تعداد واړه توليد ونکې د توليد په ساحه کې خواره واره وجود لري.توليدونه په وړو او مختلفو نقاطو کې کېږي د دغو توليداتو يوځايکولوتهراټولونهوائي.چې دا د بازارموندنې په سلسلهکې لمړيګام دي.چې په مناسبه توګه خريدار راجلبوي،دنوموړي راټولونېپه دندو کې يوڅه ابتدائي پروسس اوبسته بندي شامله ده چې په ترانسپورت کې اسانتيا رامينځته کوي.





(۱) شکل: د ميوو راټولول مونږ ته ښايي

## ۲ . پروسس کول:

وروسته داجناسو دتولید څخه پروسس ته ضرورت شته چې استفاده کوونکوته وړاندې شي.ډېر زراعتي تولیدات باید یوڅه پروسس شي چې استفادهکوونکود تقاضا او خوښي وړوګرځي،ځینې وختونه دا دندي داستفاده کوونکو لپاره نه یواځې سرته رسیږي بلکې دا دکیفیت دښوالي لپاره هم ضروري وي.اضافي مېوې اوهغه دتقاضا وړشیان چې دهغه موسم نه وي، دوچولولپاره په قطیوکې، دجوس ویستلو لپاره،یابغېر له دې نه بایدیوه پروسه طی کړي.




(۲) شکل: د میوو پروسس موثر ته‌بنایي




(۳) شکل: د نړۍ او افغانستان د پروسس د فابریکو تر منځ توپیر رابنایي

په ترکیه کې د ممیزو د پروسس فابریکه چې درجه بندي اوصفايي د سکن لایزر په ذریعه تر سره کیږي

په افغانستان کې د ممیزو د پروسس فابریکه




(۴) شکل: پورته شکل مونږته ښايي چې په افغانستان کي د ميوه جاتو د پروسس د فابريکو نه شتون له امله په ړ ګونو ميټرک ټنه پروسس شوي ميوه جات لکه: جوس، مربا او داسي نور چي په هر کال کي د ګاونډيو هيوادونو څخه

## ۳- . درجه بندي اومعياري کيدل:

درجه بندي دتوليداو بسته بنديپه مختلفو بنډلونو باندېدلالت کوي.په هربنډل کې ديوهم شکله خاصيت يا ديوخاص کيفيت،يادمختلفوقسمونو لکه،دخواصو په اساس،دشکل او اندازي په اساس درجه بندي اجراکيږي. مختلف شيان دي ته ضرورت لري چې جلاجلا داستفاده کوونکو دخوښي او انتخاب په اساس اوهمدارنګه دخرڅلاو دښه قيمت لپاره سورت بندي شي. دمېو.معيارکېدل په دې معني دي چې داخيستونکې اوخرڅونکې په مينځ کې په يوشان کيفيت لرونکي باندې په خپل وخت اوځاي پريکړه وشي معياري کيفيت دمشخصوخاصيتونو په اساس لاسته راځي،دمېوو معياري لاسته راوړنه داندازی،رنګ،ظاهري ښه،خواصو،پخوالي،خوږوالي، خوند خصوصياتواوداسې نوروپورې اړه لري. همدارنګه دمعياري کولولپاره دخصوصياتوتاسيس دمعياردددرجې په نامه يادېږي.دهمدي لپاره درجه بندي دمعياري کېدلووروسته ترسره کېږي اويو فرعې وظيفه د معياري کېدلوده.





(۱۰) شکل: د ميوو درجه بندی په خارجی هيوادنوکی مونږ ته ښايي

(۱۰) شکل: د ميوو درجه بندی په افغانستان کي مونږ ته ښايي

## ۴ . بسته بندي کول:

مېوې په طبعي ډول سره د خرابيدو خاصيت لري،بسته بندي نه يواځې دمېوې لپاره بلکې دټولوزراعتي توليداتو لپاره دبازارموندنې په هرقدم کې ضروري ده. بسته بندي بازارموندنې ته آسانتياوي برابروي،دا ضروري ده چې توليدات دلري ځايونو لپاره په مؤثريت سره بسته بندي شي. اودامرسته کوي چې دفزيکې خرابيدو څخه مخنيوي اوفروشاتوته ترقي ورکړي. بسته بندي دتوليداتو په خاصيتونو باندې،فزيکي اواقليمي محيط باندې او د بازارموندنې په پروسي باندې متکې دي چې استفاده ترې کېږي.دلرګي بکسونه،کاغذي بکسونه،اوپلاستکې جالي دميوه جاتودبسته بندي لپاره پکاريږي.





(۱۱).شکل

## ۵ . ترانسپورټ(انتقال):

داجناسو وخت او ځاي دبازارموندنې په پروسه کې دوه مهم فکتورونهدي،ترانسپورت دبازارموندنېيوحتمي وظيفه دهچې دوخت اودځايپه سودمنديکې زيادت راولي.د ترانسپورت سيستم نه يواځې دقيمتونو په تعينولو باندې تاثيرکوي بلکې دبازارموندنې په مؤثريت کې زياتوالي راولي.دمېوو انتقال لپاره د اور ګاډي لارې اوځمکني سرکونه ډېر داستفادي وړ دي.



(۷) شکل: دميوه هوا ليتر انسپورتمونږتهښنايي




(۸)شکل: د میوه جاتو انتقال د افغانستان څخه بهر انیو هیوادونو ته او د انتقال مصرف د ټن په اساس دهوايي او زمیني ترانسپورت د مصرف تفاوت موږته ښايي

### ۶- توزیع کول:

دا دغونډولودوظیفي برعکس دي. په دې وظیفه کې اجناس په فزیکي شکل استفاده کوونکو لاس ته انتقالیږي، کله چې غونډول تکمیل شو اواجناس تیار شو داستفادي لپاره د استفاده کوونکو دخوښي په مطابق داوظیفه تعقیب کیږي.دا اجناس دخرڅلاو لپاره پرچون خرڅونکوته ورکول کیږي ترڅوانفرادي مستهلکنوته ورسیږي. له همدې سببه دا د توزیع دسیستم وظیفه ده چې استفاده کوونکو ته دتقاضا سره سم توزیع وکړي.



(۵) شکل: دمیوو توزیع موږته ښايي

### ۷. ساتن ځایونه:

میوېدخرابیدودخاصیت په اساس ساتن ځایونه یوه مهمه وظیفه ده.دساتنې اساتتیاوو څخه دبازارموندنې په مختلفومرحلوکې استفاده کیږي.میوې دغیرمنظم موسم اود یوکال نه تر بل کال د تغیر په اساس پیژندل شوي.برعکس د مېوو مصرف رسول برقرار حالت کې وي.او د میوي عرضه اوتقاضا د پراخه خاصیت غوښتنه کوي

چې په لویه پیمانه میوې باید ذخیره شي،دیو کافي وخت لپاره دساتنې موده ممکن مختلفه وي دڅو ورځونه تر یو کال څخه زیاتپه تقاضا باندې متکي وي په ،او دا وظیفه دتولید لپاره دوخت مؤثریت زیاتوي.



(۹) شکل: دمیوو ساتنځایونه مونږ ته ښايي

## ۱۱. **مالي چارې**:

دتجارتي مالونو دبازارموندنې سیستم بې له مالي چارو پرته سرته نه رسیږي. هغه وخت چې تجارتي مالونه تولیدیږي اوهغه وخت چې دغه مال وروستنې مصرف کوونکې ته رسیږي ډېر اوږود دوران په برکې نیسي،نوپه داسې حالاتوکې پیسو ته ضرورت دي چې په مختلفوفعالیتونوکې پرې مالي چارې ترسره شي چې عبارت دي لهانتقال،پروسس،بسته بندي،ذخیره کونه اوداسې نوروڅخه.چې دا ټول ضرورت لري چې په مالي چاروترسره شي ځکه دمارکېټ پروسه بې له مالي چارو ناممکنه ده،اودمارکېټ مالي ضروریات ګټې یاسود ته شاملیږي اودګټې اندازه دمنابعوپه تفکیک سره فرق کوي.

## ۱۲. **د خطر زغمل**:

یو د مالیاتو د اساسي ټکې پورې تړلي موضوع خطرګڼل کېږي. د بازار موندنې په پروسه کې د دوه نوعو خطرونو سره مخامخ کېږو یو فزیکي خطر او بل د مارکېټ خطر دي. فزیکي خطر کیداي شي دتجارتي مال دتخریب سبب شي کوم چې د حادثې،اور،یخني اویاګرمۍ له وجې صورت نیسی. دغه تجارتي مال به زیانمن اویابه یې له مینځه ویسي. دکیفیت دخرابولوخطرونه په زرخرابیدونکوتولیداتولکه مېووکې ډېرضروري اواهم دي.کله چې په

مېووکې خطرپه زیاتې اندازې سره ولیدل شي نوداد مارکېټ ټولوبرخوته خپریږي، اوبرعکس.دبازارموندنې په ټول کاروبار کې خطریاخطره مینځ ته راتلاي شي.یوخطر له مینځه نشي تللای مګرکمیدلي شي.فزیکي خطرونه دېرمختللوذخیره ځایونوپه استعمال،دذخیره کولوڅخه دمخه دموادوپه استعمال،دبهتره اوچټک انتقال دمیتودونوپه استعمال،دبسته بندي دمناسبو موادو په استعمال، اوداوراونوروحادثوپه مقابل کې دبیمه کولوپه اساس کمیدلي شي.دمارکېټ خطردکمواوزیاتوقیمتونودتعینولو،دمناسبواودقیمتونودعلمي معلوماتودخپرولو،اعلانونواوداستعمال په اټکل کولواودحدمعلومولوپواسطه کمیدلي شي.

## ۱۳. د بازار یا مارکیټ معلومات:

د مارکیټ معلوماتدبازارموندنې په سیستم کې دمؤثره فعالیتونواودهغې روښانه کولوکې غوره ونډه لري.د مارکیټ معلومات په پراخه پیمانه سره د مارکیټ څخه په خبرتیاکې د یوتماس یا ارتباط په ډول دي. کوم چې په مارکیټ کې ټول حقایق،براورد،نظریات اونور معلومات چې داجناسواوخدماتوبازارموندنه ترتاثیرلاندې راولي په برکې نیسي.دښه مارکیټ دمعلوماتوخصوصیات جامع ، پراخي ، مطمیئن،مشخص وخت،ازادي،یقین اواعتماد اومساویانه ویش دیوساحې مهم دي. او د مارکیټ د معلوماتو لپاره غوره منابع لکه شخصی روابط،پوست،تلیفون،اخبار،رادیو،تلویزیون ،مجلې، دولتی نمایندګي، راپورونه او نرخ نامې دي.

## دمارکیټ چینل یا سلسله:

هغه سلسله ده چې د تولید کوونکي څخه مصرف کوونکې پورې جریان تر څیړنې لاندې نیسي د مارکیټ چینل څخه عبارت ده.

( kohls اوUhl ) په (1980م) کال کې داسې تعریف کړ:د تولیدونکي څخه تر مصرف کوونکې پورې دتولیداتومتبادله لاره ده.

د مېوه جاتو لپاره د بازارموندنې شبکه نسبت غله جاتو ته فرق کوي.د مېوو په بازارموندنه کې د خوساتوب،تنکې والي د خصوصیاتو له وجې نه بسته بندي مهمه ده.د پرمختللی ممالکو مصرف کوونکي د تازه مېووپه نسبت پروسس شوی برخې ډېرې غواړي.هغه تجارتی مال چې د وړو تولید کوونکو پواسطه خرڅیږي مختلفې او اوږدې لارې تعقیبوي،نسبت هغه تولید شوو مواد وته چې د لویو مولدینو پواسطه سرته رسیږي.تولید وروسته د ټولولو څخه خرڅیږي یا په اجباري ډول خرڅیږي. کیداي شي چې د یو اوږد ځنځیر په سلسله کې نسبت هغه تولید ته چې په وروستیو میاشتو یا ضعیف دوره کې قرار لري خرڅ شي

## دمیوه جاتو لپاره د بازارموندنې چینلونه:

دمیوو لپاره د بازارموندنې شبکه دتولیدونکي نوعی اودمېوې نوعې ته تغیرکوي.د بازارموندنې د شبکې پیچلې نمونه اودبازارموندنې په پروسه کې هغه برخه چې دهرمینځګړي شخص په کې رول لوبوي په لاندې چوکاټ کې ډېرښه ننداره کېدلاي شي (Fig.16.1)لکه دحاصل څخه مخکې قرار دادیان، کمیشن کاران او د کرنی کوپراتیفونه په بازارموندنه کې ډېر مهم رول لوبوي.خوبیاهم په عام ډول په زیاته اندازې سره رول لرونکي اشخاص کوم چې په لوړه پیمانه سره تولیدته جریان ورکوي په مرکزکې ښودل شو.

د مارکیټنګ چینلونه






(۱۴) شکل: دمیوو دتولیداو بازاریابی روډمپ (شاهراه) دافغانستان په داخل او ګاونډیو هیوادونو کې مونږ ته راښايي




(۱۵) شکل: په افغانستانکي هرتيکلچري محصولاتو پنځه عمده مارکيټونه او په دغه عمده مارکيټونو کي د عمده فروشانو شميراو دهغوي د تجارت اندازه د يو کال په جريان کي او د کابل د مرکز څخه د هغي ارتباطات په نور ولايتونو کي مونږ ته راښايي.

**دمیوه جاتودبازارموندنې څیني عامي شکې په لاندې ډول دي.**

۱.کروندګرمصرف کوونکو ته انتقالوي.

۲ .کروندګریي لمړي عمده خرڅونکوته،لمړي عمده خرڅونکې یې دوهمي عمده خرڅونکوته،دوهمي عمده خرڅونکې یې پرچون خرڅونکو یا ګرځنده خرڅونکوته او بلاخره مصرف کوونکو ته انتقالوي.

۳ .کروندګریي پروسس کوونکو ته (بد لونکې دمېوو په جوس، مربا ،اچاراو داسې نور)

اوپروسس کونکې یې عمده خرڅونکو ته،عمده خرڅونکې یې پرچون خرڅونکو یا ګرځنده خرڅونکوته اودوي مصرف کوونکو (مستهلک) تهاتنقالوي.

۴ .کروندګریي دکروندګرواتحادیه (کوپراتیف) ته ،دکروندګرواتحادیه یې کمیشن کارانو ته،کمیشن کاران یې دوهمي عمده خرڅونکو ته، دوهمي عمده خرڅونکې یې پرچون خرڅونکو یا ګرځنده خرڅونکو ته اودوي مصرف کوونکو ته انتقالوي.

۵ . کروندګریي لومړي خرڅونکې ته او دوي یې پروسس کوونکوته انتقالوي.

۶ . کروندګر یېمحلي ټولونکوته او ټولونکې یې لمړي عمده خرڅونکوته،لمړي عمده خرڅونکېیې دوهمي عمدهخرڅونکې ته،او دوهمي عمده خرڅونکې یې پرچون خرڅونکو یا ګرځنده خرڅونکو ته او دوي یې مصرف کوونکو (مستهلک)ته انتقالوي.

۷ .کروندګر مخکې دذخیره کولوځخه قراردادیانوته اوقرارادیان یې لمړیو عمده خرڅونکوته،لمړي عمده خرڅونکې یې کمیشنکارانوته ،کمیشن کاران یې دوهمي عمده خرڅونکوته ، دوهمي عمده خرڅونکې یې پرچون خرڅونکوته اودوي یې مصرف کوونکو(مستهلک) ته انتقالوي.

**دمارکیټ دفعالیتونو اغیزه من کرڅول**

- هغه نباتات کرل چه په هغه کې ګټه زیات مولیدینو ته وی .
- ښه مارکیټ پیدا کول ترڅو ښۀ حاصلات په ښه بیه خرڅ شي.
- دضایعاتواو مصارفوکمول

تولید کونکي باید هغه نبات وکري چه په مارکیټ ورته تقاضا موجود وی او په ښه نرخ خرڅ شي دخالصي ګټي دلاسته راوړولو په خاطر تولید کونکي دمارکیټنګ دموسساتو سره دتخنیکې مشوري په اساس نتیجي ته به ورسیږي او دڅیړني موضوع باید معلومه شي چه کوم محصول په کم مصرف زیات حاصل او په مارکیټ کې په ښه نرخ خرڅیږي بزګرارن هغه جنس یا میوه جات تولید کړي چه دمارکیټ دغوښتني مطابق وی او زیاته ګټه ولري دنوي تکنالوژي استعمال دښه کیفت دلاسته راوړلو په خاطر دسری مناسب مقدار استعمال اودمناسب وخت ،شاخه بري ،دوا پاشي او اوبه لکول په منظمه توګه دمارکیټ په فعالیتونه اغیزه من کوي .

**په افغانستان کي دتولید په اړوندمشکلات**

1. په کرنه کي ضیعف منیجمنت
2. دعنعنوی کرنې رواج
3. دنوي تکنالوژي نه تطبیق کول
4. دکافي سری عدم استعمال
5. داصلاح شوي تخمونوعدم موجودیت
6. دناروغیواو افتونوشتون

**په افغانستان کي دمارکیټ په وړاندي مشکلات**

1. دمناسب سرکونواوترانسپورتي وسایلو عدم موجودیت.
2. دپروسس دستګاونه موجودیت .
3. دمولدینوبې خبری دمارکیټ دعرضي اوتقاضا په وړاندي.
4. دمجهزګودامونو او سړو خونو کموالي یانشتوالي .
5. دافغاني میوه جاتو دخرڅلاوپه ارزانه بیه په خارجي مارکیټونوکي..
6. دمحصولاتو لپاره په خارج دافغانستان کي مناسب مارکیټ پیدا کول.
7. امنیت
8. په خارجي مارکیټونوکي رقابتي ستونزي

## نړیوال سوداګریزپه دوه ډوله دي:

**۱ - بارتر**:هغه بازار یا سوداګریزته وایي چه صادرونکي هیواد دجنس په مقابل جنس ترلاسه کوي.

**۲ - ازاد**:هغه سوداګریزته وایي چه صادرونکي هیواد دجنس په مقابل کي نقدي پیسي ترلاسه کړي.




(۹) شکل: دمیوه جاتو بین المللي مارکیټ کې رانبایي

**د مارکیټینګ کانالونه**:

داچې دتولید په یوه ساحه کې ډېر شمیر کروندګر یو معین شی تولیدوي ، نو طبعاً مقدار د تقاضا هلته کم وي او نرخونه نزولي حالت لري .له دي وجي جنس هغه ځایونو ته عرضه کیږي چیرته چې ورته تقاضا لوړه او په مناسب نرخ خرڅ شي .دلته په کار دي چې جنس په مناسبو چینلونو کې تر مستهلک پور ي ورسیږي .

**مارکیټ د چینل دندي**:

د مارکیټ چینل له تولیدونکو څخه شیان اخلې او مستهلکینو ته د هغي د رسولو کار ترسره کوي ، دغه چینل هغه تولي ستونزي او خنډونه له مخي لیري کوي چې مستهلکینو ته د شیانو د رسولو په لاره پراته دي . د مثال په ډول : وخت ، ځای ،ترانسپورت او داسي نور.

هغه کسان چې د مارکیټ په چینل کې کار کوي دا لاندي چاري تر سره کوي.

**۱- معلومات** (Information):

د مارکیټ چینل د تجارتي څیز په اړه اود مستهلکینو د خوښې په اړوند معلومات اداري ته برابروي اورسوي ځکه چې له لګښت کوونکو سره د هغوي په مستقیم ډول اړیکي ټینګي وي ،د هغوي لخوا د برابرو شویومعلوماتو پر بنسټ ، کمپنۍ د راتلونکې لپاره پلان طرحه کوي .

**۲_ ترقي promotion**:

مارکیټ ته د یو نوي څیز د وریپیژندلو ته ترقي وایی ، خو دا ترقي باید د زړو او پخوانیو شیانو په خرڅلاو کې هم مرستندویه ثابته شي .

**۳_ اړیکه** (Contact):

پیداکوونکې له لګښت کوونکې سره اړیکه ټینګوي ، او هغه د نویو شیانو په ګټو او ښیګڼو خبروي او اخیستلو ته یې هڅوي .

**٤_ هم اهنګي(Matching)**:

د مستهلکینو د غوښتنو سره سم شیان جوړول کیږي ، لکه د شیانو جوړښت ، چینل درجه بندي کول ، پیک کول او داسي نور .

**۵_ د افکارو تبادله کول** (Negotiation):

پیداکوونکي او مستهلکین د خپلمنځي سلا او مشوري له مخي د څیز د بیې او نورو اړوندو شرایطو پر سر موافقي ته سره رسیږي ، تر څو د څیز ملکیت تبدیل کړای شي .

**٦_ د شیانو فزیکي ویش**( physical distribution):

د شیانو ویش ، له پیداکوونکې څخه د شیانو د اخیستو او مستهلکینو ته د رسولو کار شونی کوي ، په دي عمل کې ټرانسپورټ او ګودامونه کارول کیږي.

**۷_ مالیات یا تمویلي مرسته** ( Financing ):

دا کسان پیسي را جمع کوي او پیدا کوونکې ته د څیز بیې له وړاندي نه ادا کوي او له هغه سره د تمویل په برخه کې مرسته کوي .

**۸_ خطر په غاړه اخیستل** ( Risk taking ):

د شیانو د ویش په مهال پیښیدونکي خطر څخه د ژغورني پروسه.

دا حتمي نه ده چې هر چینل د دغه پورته ټولي وظیفي سرته ورسوي ، خو سوداګریز منځګړي له دي جملي څخه اکثره کارونه انجاموي .

**د چینلونو د سطحو تعداد**:

د چینلونو ویش د چینلونو د سطحو په اساس تشریح کیږي . د توزیعاتي چینل د منځګړو هره کړی چې تولید او د هغه مالکیت ورستني اخیستونکي ته انتقالوي د چینل سطحه channel level بلل کیږي.

اجناس په مناسبو کانالونو کې تر مستهلکه پوري رسول د خرڅلاو اساس د ي.

هر چینل ځانګړي خصوصیات (ګټې اوتاوانونه ) لري . خو یو ګډ خاصیت چې دا چینلونه یې لري هغه داد ي چې تولیدونکی او مستهلک دواړه په هر چینل کې یو لړ وظایف سرته رسوي او دوي د هر چینل برخي دي .

چې په لاندي ډول هر چینلوتشریح کیږي .

**اول کانال**:

تولیدونکی ← مصرفونکی

دي چاينل ته د بازار موندني مستقيم چاينل وايي او دمنځګړو سطحي نلري . داداسي يو توليدونکی په بر کې نيسي چې مستقيماً په مصرفونکی خپل توليدات له فارم څخه پلوري ، يا داچې خپله توليدونکی جنس د سرک غاړي ته راوباسي او په مصرفونکو باندي يې خرڅوی . په دغه چينل کې هغه کسان چې د توليد حجم يې کم وي معامله کوي .

**ددغه چينل ګټې**:

په دغه چينل کې کميشن کاران دخالت نلری او ګټه يې مستقيماً توليدونکی او مصرفونکی ته رسيږ ي او مصرفونکی ته ارزان تماميږي مصرفونکی تازه ميوه او تازه سابه تر لاسه کوی .

**تاوانونه يې** :

دغه امکانات يوازي د حاصل راټولولو په وخت کې تر لاسه کيږي .

د ښار مصرفونکی د دغه اسانتياوو څخه استفاده نشي کولای .

**دوهم کانال**:

توليدونکی ← پرچون فروش ← مصرفونکی

د منځګړو يوه سطحه لري د مستهلکينو په مارکيټ کې دغه سطحه قسماً پرچون فروشي ده. د بيلګي په ډول هغه توليدات چې مستقيماً په غټو پرچون فروشانو خرڅيږي او بيا وروسته نوموړي اجناس په ورستنيو مستهلکينو پلورل کيږي په دی کانال کې توليدونکی د ځای له مفيديت نه په استفادي سره خپل جنس هغه ځای ته انتقالوي چيرته چې د جنس لپاره تقاضا موجوده وي او په مناسب نرخ خرڅ شي .

مولد ← عمده فروش ← پرچون فروش ← مصرفونکی

**دريم کانال**:

منځګړو دوه سطحي لري چې يوه يې عمده فروشي او بله يې پرچون فروشي ده مستهلکينو ته د توليداتو د رسولو دا يوه دوديزه او عادي طريقه ده .

په دغه چينل کې عمده فروشان د خپلو نمايندګانو په واسطه په سيمه ايزو مارکيټونو کې کار کوي ميوي او سبزی تر لاسه کوي او هغه پروسس ، بسته بندي ، سورت او درجه بندي کوي او مارکيټ ته يې انتقالوي او پرچون فروشانو باندي يې خرڅوي او پرچون فروشان جنس په مصرفونکو باندي خرڅوي په دي کانال کې جنس د اول او دويم کانال په پرتله ګران وي په دي خاطر چې جنس باندي يوه اندازه خدمات لکه طبقه بندي ،سورت او انتقا ل چې مصارف د بازار پلټني د جنس بيه لوړ وي ، مصرف کونکې ته جګ تماميږي .

**ځلورم کانال**:

دمولد ⟵ د عمده فروش نماینده ⟵ عمده فروش ⟵ پرچون فروش ⟵ مستهلك

د منځګړو دري سطحي لري چې د عمده فروش نمايند ، عمده فروش او پرچون فرش څخه عبارت ديپه دغه چينل کې سوداګر د خپل استازي په واسطه جنس راټولوي او دعمده فروشي مارکيټ ته يې انتقالوي او د هغه ځاى څخه يې عمده فروشان په پرچون فروشانو باندي او پرچون فروشان يې په مصرفونکوې باندي پلوري .ځيني نور کانالونه چي د تجارتي توزيع کانالونه دي اود تجارتي بازار موندونکو له خوا استعماليږي ، دوي خپل توليدات مستقيماً تجارتي مشتريانو ته ورکوي .همدارنګه دغه تجارتي بازار موندونکي ځيني وخت خپل توليدات په صنعتي مشتريانو هم خرڅوي چې دغه صنعتي مشتريان يې د صنعتي پروسس څخه وروسته په تجارتي مشتريانو خرڅوي . د تجارتي توزيع ځيني کانالونه په لاندي ډول دي :

الف- توليدونکى ⟵ تجارتي استعمالونکى

ب- توليدونکى ⟵ عمده فروش ⟵ تجارتي استعمالونکى

ج- توليدونکى ⟵ دلال نماينده ⟵ تجارتي استعمالونکى

د توليدونکى ⟵ دلال نماينده ⟵ عمده فروش ⟵ تجارتي استعمالونکى

## په بازار موندنه کې مينځګړي ولي استعماليږي ؟

د ډ يرو چارو له سرته رسولو وروسته ضرور ده چې په دي غور وشي چې توليد شوى توکي چيرته ، څنګه او په چا باندي خرڅ شي. منځګړي ورستني مارکيټ ته د توليداتو په موثر رسولو کې غوڅ رول لري . داچې منځګړي خاص ارتباطات، تجربه، پوهه او معاملات لري نو کولاى شي نسبت يو بل چاته د خرڅلا و اهداف په غوره ډول په لاس راوړي.د اقتصادي نظام له نقطه نظره د منځګړو رول په دي کې دي چې توليدات له مولدينو څخه مستهلکينو ته رسوي. په توزيعاتي کانالونو کې منځګړي په ډيره پيمانه توکي له توليدونکو اخلي او بيا پرچه پرچه يې په ګڼ شمير مصرفونکو پلوري ، له همدي کبله ده چې وايو منځګړي د عرضي او تقاضا د هماهنګ کولو په برخه کې کليد ي دنده اجرا کوي .

# دریم فصل

## دمارکیټنګ موسیسي

## **Marketing** Institutions

دهغي موسیسي څخه عبارت دي چي د مارکیټنګ مختلف وظایف پکي ترسره کیږي او په لاندي ډول طبقه بندیشوي دي.

A . **تاجران** Merchant meddle men

۱- عمده فروشان wholesalers

۲- پرچون فروشان Retailers

B **دلالان** Agent middle men

۱- بروکران brokers

۲- کمیشن کاران commission agent

Cمحتکرینspeculative middle men

D **پروسس کوونکي** processers

E **تسهیلاتي موسیسي**facilitative organization

F **اشتهارات او اعلانات** Advertisement

**الف عمده فروشان**: دوي دجنس اصلي مالکین دي او جنس عملاً دوي سره موجود وي، او دخرڅلاو صلاحیت لري، دوي جنس دعمده تجار څخه ترلاسه کوي اوپرچون فروشانو باندي خرڅوي، او مستهلکینو سره داد او معامله نلري عمده فروشان دتجارتي فعالیتونو له لحاظه په مختلفو ډولونو ویشل شوي د دي

**الف**: **دعمده فروشانو ډولونه دمعاملاتو له لحاظه**

۱- دمحدودو شیانو عمده فروشي

۲- دغیر محدودو شیانو عمده فروشي

۳- دنقدي معاملاتو عمده فروشي

۴- دقرضي او کریدت عمده فروشي

۵- دصنعتي شیانو عمده فروشي

۶- داستهلاکي شیانو عمده فروشي

۷- دساختماني شیانو عمده فروشي

۸- دخوراکي موادو عمده فروشي　　　　۹ - دزراعتي موادو عمده فروشي

**ب: دعمده فروشانو ډولونه دخدماتي ساحي له لحاظه**

۱- محلي عمده فروشان

۲- منطقوي عمده فروشان

۳- ملي عمده فروشان

۴- بين المللي عمده فروشان

۱- **محلي عمده فروشان**:دوي په محلاتو کي تجارتي فعاليتونه کوي او د محلي مارکيټونو څخه د ضرورت وړشيان ترلاسه کوي او مرکزي مارکيټونو ته انتقالوي.

۲- **منطقوي عمده فروشان**: ددوي ساحه دکار اود فعاليت له لحاظه د محلي عمده فروشانو په نسبت پراخه ده او په څو ولايتونو کي تجارتي فعاليتونه ترسره کوي.

۳- **ملي عمده فروشان**: دهغه عمده فروشانو څخه عبارت دي چه د ټول هيواد په سطحه تجارتي فعاليتونه ترسره کوي او په هر ولايت کي يوه نماينده ګي لري.

۴- **بين المللي عمده فروشان**: دهغه عمده فروشانو څخه عبارت دي چه په څو هيوادونو کي د فروشاتو نماينده ګي لري، مثلاً دټيوټا دکمپني دموټرنو نمايندګي په سلو هيوادونو لکه په اروپا ، امريکا ، اسيا ، او افريقايي هيوادونو کي تجارتي فعاليتونه ترسره کي.

## دلالان Agent middle men:

### ۱- بروکران Brokers

دوي سره عملاً جنس موجود نه وي مګر د خپلي مسلکي پوهي په اساس خريدار او فروشنده سره نژدي کوي، دوي دعرضي، دتقاضا ، نرخونه او نور مسلکي مسايلو په مورد د مشوري صلاحيت لري چه دمشوري په اساس خپل حق الزحمه ترلاسه کوي.

### ۲- کميشن کاران Commission agents

دوي سره عملآ جنس موجود وي مګر مالک يا صاحب د جنس نه وي، اود تجار مال د کميشن په اساس په مصرف کونکي باندي خرڅوي او خپل حق الزحمه يا کميشن د فيصدي په اساس دتجار څخه لاس ته راوړي.

C- **محتکرین** Speculative middlemen

دوي همیشه پدي فکر کي دي چه جنس کله چه ارزان وي د بازار څخه په زیات مقدار خریداري کوي او کله چي دجنس کمبود په بازار کي محسوس او نرخونه صعودي حالت غوره کړي خپل جنس مارکیټ ته وړاندي کوي د خلکو د مجبوریت څخه نامشروع استفاده کوي او خپل جنس په ډیره لوړه بیه مصرف کوونکي باندي خرڅوي

D- **تسهیلاتي سازمانونه** Facilitative institution

دهغه موسیساتو څخه عبارت دي چه د ذخیري، انتقال دمال دهوایي هډي، بحري بندرونه او دریل ستېشنونه څخه د تجار لپاره جنس د ذخیري او انتقال په اړوند اسانتیاوي برابروي.

E- **تبلیغاتي سازمانونه**:

دهغه موسیساتو څخه عبارت دي چه دتجار دجنس لپاره په راډیو، تلویزون، اخبار دښه شهرت او ښه کیفیت په خاطر د اعلان زمینه مساعدوي چه په نتیجه کي د فروش کچه لوړیږي او دمشتریانو توجه ځانته جلبوي.

## دمارکیټ تشکیلات:

۱- **محلي مارکیټونه**: اولي او لمړني مرحله د کرنیزو محصولاتو په جمع اوري کي چي محلي مارکیټ ته دمزرعي څخه انتقالیږي دمحلي مارکیټونو څخه عبارت دي چي دتولید ساحي سره نږدي موقیعت لري اوپه دي مارکیټونو کي دتجار نماینده، پروسس کونکي خپل دضرورت وړ اجناس ددغه مارکیټونو څخه تر لاسه کوي بزګران اومحلي مولدین خپل جنس محلي مارکیټ ته راوړي او دمرکزي تجارانو نماینده او عمده فروشان خپل جنس دمحلي مارکیټ څخه ترلاسه کوي او دهقان سره کومي اړیکي نلري.

**دمحلي مارکیټونو وظیفي**: محلي مارکیټونه لاندي وظیفي ترسره کوي.

۱- دجنس پلورل نورو عمده تاجرانو باندي

۲- دمحصولاتو جمع اوري دمختلفو فارمونو څخه

۳- دمحصولاتو سورت کول اودرجه بندي

۴- دجنسونو ذخیره

۵- دجنس انتقال تر عمده مارکیټ پوري

**په محلي مارکیټونو کي د میانجي ډولونه**:

څلور ګروپه کسان په محلي مارکیټونو کي فعالیت کوي چي عبارت دي له

۱- **محلي خریداران**: دوي محصولات د مولدینو او دهاقینو څخه ترلاسه کوي او عمده فروشان باندي یي خرڅوي.

۲- **دمرکزي مارکیټونو نماینده ګان**: دوي خپل جنس دمحلي خریدارانو څخه ترلاسه کوي او دهقانانو سره کوم معامله نلري.

۳- **محلي پرچون فروشان**: دوي خپل جنس ددهقان یا مولد څخه ترلاسه کوي او مصرف کوونکي باندي یي خرڅوي.

۴- **دکوپراتیف نماینده**: دکوپراتیف غړي چه مولدین دي خپل جنس په محلي مارکیټونو کي دکوپراتیف په نماینده ګي باندي خرڅوي او هغوي خپل جنس ولایتي او مرکزي مارکیټونو کي د کوپراتیف د نماینده ګي سره معامله کوي.

**مرکزي عمده فروشي مارکیټونه**:

دغه مارکیټونه په ښارونو کي موقیعت لري او دخپل دضرورت وړ شیان د محلي مارکیټونو څخه ترلاسه کوي او نورو مارکیټونو ته یي لیږي.

۱- **د مرکزي عمده فروشي مارکیټونو وظیفي**: هغه وظیفي چي محلي مارکیټونه یي ترسره کوي عیناً هغه وظیفي مرکزي عمده فروشي مارکیټونه هم ترسره کوي، مګر په ښه تسهیلات، بسته بندي، درجه بندي، انتقال، ذخیره اوداسي نور.

۲- **په مرکزي عمده فروشي مارکیټونو کي دمیانجي ډولونه**:څلورډوله کسان په دغه مارکیټونو کي فعالیت ترسره کوي چي عبارت دي له.

۱- داخلي تجاران

۲- داخلي دلالان

۳- دکوپراتیف نماینده ګان

۴- بین المللي تاجران چه صادراتو او وارداتو سره کاراوبار لري

۲- **دوهمي مرکزي عمده فروشي مارکیټونه Secondary wholesale market**

پدي مارکیټونو کي دوه ډوله مارکیټ وجود لري.

۱- هغه مارکیټ چي د انتقال او توزیع دجنس چي پروسس شوي نه وي په غاړه لري او دغه مارکیټ ته jobber market وایي.

**Jobber**:هغه تاجران دي چه جنس په زیاته پیمانه دعمده فروشي اولي څخه ترلاسه کوي اوپه کم مقدار په پرچون فروشانو باندي یي خرڅوي.

۲- هغه مارکیټ چه یوازې د پروسس شوي جنسونو توزیع سره کار اوبار لري دMill market په نوم یادیږي دغه مارکیټ محصولات دپرچون فروشانو له چینل څخه مصرف کوونکي ته رسوي.

**د کوپراتیفونو عمده مارکیټونه**:د کوپراتیف غړي چه دکرنیزو محصولاتو مولدین دي په دسته جمعي شکل د محصولاتو په خرڅلاو کي اقدام کوي دوي دعمده فروشي او پرچون فروشي وظیفي دواړه اجراکوي او په محلي، ولایتي او مرکزي مارکیټونو کي نماینده ګي لري او خپل محصولات خپلي نماینده ګي ته انتقالوي او دهغوي له لاري خپل جنس عرضه کوي.

C. **پرچون فروشي**: پرچون فروشي دتوزیع په پروسه کي وروستي موقف لري او هغوي همیش

مصرف کوونکي سره په تماس کي وي او خپل مصرف کوونکي دنږدي څخه پیژني او مصرف کوونکي خپل ضرورتونه د پرچون فروشي څخه ترلاسه کوي.

پرچون فروشي د استهلاک او تولید ترمنځ اساسي نقطه دارتباط کڼل کیږي پدي معني چي پرچون فروشان د مصرف کوونکي تقاضا او دتقاضا مقدار د تولید نقطي څخه د عمده فروشانو دچینل له لاري منعکس کوي.

څرنګه چي نفوس منشأ داستهلاک ده دنفوس د شمیر په تناسب د پرچون فروشي تشکیلات وسیع او پراخ دي په افغانستان کي د پرچون فروشي موسیسات د مارکیټنګ اساسي دنده په غاړه لري او دزیاتو خلکو لپاره د کار زمینه برابروي.

**دپرچون فروشانو ډولونه**:

۱- **کوچني مستقل دوکانونه** small scale independent store :دغه مغازه په مستقله توګه فعالیت

کوي او دمالکیت په ارتباط نورو پرچون فروشي سره کومه اړیکه نلري، پدي دوکانونو کي د کورني غړي په واسطه ددوکان معاملاتي کارونه ترسره کیږي او خپل مشتریانو سره د نږدي څخه په تماس کي دي او ورسره پیژندګلوي لري.

۲- **ارتباطي مغازې** Dependent store:دري ډلور دوکانونه چي دیو مرکزي اداري پوري تړلي وي

او دمشابه شیانو دخرڅلو فعالیت ترسره کوي ارتباطي مغازې ګڼل کیږي دغه ارتباطي مغازې د عمده فروشانو څخه زیات مقدار جنس په مناسبه بیه ترلاسه کوي او زیات مقدار جنس مصرف کوونکي ته عرضه کوي چه په نتیجه کي مناسبه ګټه ترلاسه کوي دوي کولاي شي چه نورو پرچون فروشانو سره رقابت وکړي او جنس په مناسبه بیه په مصرف کوونکي باندي خرڅ کړي.

۳- **داوطلبارتباطي مغازې** voluntarily dependent store:یو شمیر پرچون فروشان دداوطلب

په شکل دیوي عمده فروشي تر نظارت او اداري لاندي کار کوي دغه عمده فروشي خپل پرچون فروشانو باندي جنس په مناسبه بیه خرڅوي چه په نتیجه کي دوي کولاي شي چي نورو پرچون فروشانو سره رقابت وکړي.

۴- **لوي پلورنځي** Department store:دپرچون فروشي مغازې دجملي څخه شمیرل کیږي د ښه تنظیم

او خدماتو په خاطر دغه مغازي مختليفي برخي لري چه په هره برخه كي مختلف شيان خرڅيږي مثلآ په يوه برخه كي دماشومانو البسه او دساعت تيري سامان په بله برخه كي ورزشي بوټان، كميس، جمپر او داسي نور او په بله برخه كي عطريات، شامپو، صابون او په بله برخه كي كمره، ساعت، كمپيوټر او نوربرقي سامان خرڅيږي.

۵- **سوپر مارکیټ super market**:سوپر ماركيټونه هم د پرچون فروشي په رديف كي شامل دي

پدي مغازه كي ټول دضرورت شيان د مصرف كوونكي په مخ ايښودل شوي دي او دجنسونو نرخ پكي ليكل شوي وي پدي مغازه كي مصرف كوونكي تحريک كيږي چه زيات شيان خريداري كړي او خپل شيان په لاسي كراچيو كي چه دمغازي له خوا برابر شوي وي ځاي پرځاي كوي اود Cashier په مخ كي دريږي اود خپل دجنس پيسي تحويليي اورسيدترلاسه كوي او دمغازي څخه وځي

۶- **خرید او فروش مرکز shopping center**:يو شمير پرچون فروشي د ښاري پلان په اساس د ښار

په ځو برخو كي په مختلفو ځايونو كي جوړيږي چه مصرف كوونكي خپل ضرورتونه ددغه ځايونو څخه ترلاسه كوي او په دغه ځايونو كي د موټرونو پاركينګ ځاي هم په نظر كي نيول كيږي.

۷- **تخفیفي پرچون فروشان Discount store**:دغه پرچون فروشي خپل مشتريان ته دنورو

پرچون فروشانو په نسبت يوه اندازه تخفيف د جنسونو په نرخ كي په نظر نيسي دغه مغازي زياتره محصلينو، متعليمينو او غريبو خلكو لپاره په نرخونو كي تخفيف راوړي.

۸- **دولتي مغازي Government store**:دغه پرچون فروشي يوازي ددولت دمامورينو د خدماتو په

خاطر فعاليت كوي او محدود شيان لكه وره، غوړي، چاي، صابون او بوره دسبسايدي په منلو سره په مامورينو باندي خرڅوي.

۹- **استهلاکي کوپراتیفي مغازي consumer cooperative store**: دغه استهلاكي مغازي يوازي

د كوپراتيف غړي سره داد او معامله لري د كوپراتيف غړي خپل ټول ضرورتونه ددغي مغازي څخه په نازل (ټيټه) بيه ترلاسه كوي او نور مصرف كوونكو سره معامله نلري او دمعاملي په صورت كي هغوي ته دغه امتياز نه وركوي او دمغازي ګټه دمالي كال په اخر كي د كوپراتيف په غړي باندي د هغوي دمعاملاتو د حجم په تناسب مازاد ويشل كيږي.

۱۰- **مستقل فروشي Direct selling**:يو شمير كسان دي چه خپل جنس موټريا كراچي يا نورو ګرځنده

وسايلو باندي خرڅوي دوي كوڅه په كوڅه ګرځي او دلوډسپيكرو په واسطه خپل مشتريان خبروي دوي ديو محل څخه بل محل ته د سيار په حالت ليدل كيږي.

# خلورم فصل

# عرضــه اوتقــاضــا

# Supply and Demand

A- **عرضه**

### دعرضي تعريف:

دجنس مختلف مقدار چي په مختلفو وختونو كي د توليدوونكو لخوا ماركيټ ته وړاندي كيږي دعرضي څخه عبارت دي. د عرضي څخه مراد هغه جنس دي چي په ماركيټ كي پيدا كيږي او په اقتصاد كي عرضه هغه شي ته واي چي په خاص قيمت سره بازار ته وړاندي شي مثلاً في ټن غنمو قيمت (۲۰۰) افغاني دي او ماركيټ ته (۵۰) ټنه راشي نو عرضه په بازار كي (۵۰) ټنه وي.

| Supply/ton | Price af/seer |
|---|---|
| ۱۰ | ۲۵۰ Af |
| ۲۰ | ۳۰۰ Af |
| ۳۰ | ۳۵۰ Af |
| ۴۰ | ۴۰۰ |
| ۵۰ | ۴۵۰ |

### د عرضي قانون:

د عامو مشاهداتو څخه معلوميږي چي هر څومره چي د يوجنس قيمت په بازار كي لوړوي نو توليدكونكي دا جنس په زيات مقدارسره بازار ته وړاندي كوي او بر خلاف كله چي قيمت را ټيټ شي نو توليدكونكي جنس بازار ته په كمه اندازه وړاندي كوي دغه حالت ته د عرضي قانون وايي.د عرضي قانون د تقاضا د قانون بر عكس ده يعني د قيمت په لوړيدو سره د عرضي په مقدار كي اضافه والی راځي توليدكونكي د زياتي ګټي په خاطر په خپل توليد كي زياتوالی

راولي نوددي په اساس ويلاي شو چي عرضه د قيمت سره مستقيمي اړيکي لري او د بلي خوا د قيمت په تغير سره عرضه تغيرکوي د عرضي د قانون دلاوضاحت لپاره لاندي جدول ته مراجعه کوو.

د عرضی جدول




دجدول څخه معلوميږي که د جنس قيمت لوړيږي عرضه زياتيږي او که د جنس قيمت راکميږي نو عرضه کميږي نو مونږ ته معلومه شوه چي عرضه د نرخ سره مستقيمي اړيکي لري ځکه د قيمت په لوړيدو سره مولدين غواړي په خپل توليداتو کي زياتوالي راولي تر څو زيات عايد ترلاسه کړي.

## د عرضي منحني:

د محصول ګرافيکي عرضي څخه عبارت دي چي په مختلف مقداراو نرخ په يو توليدي واحد کي ښودلکيږي چي په عمودي کرښه کي د محصول نرخ او په افقي کرښه کي د محصول مقدار ښودل کيږي.

| Decrease/ton | Normal/ton | Increase/ton | Price Af/kg |
|---|---|---|---|
| 40 | 50 | 60 (-) | 100 |
| 50 | 60 | 70 | 120 |
| 60 | 70 | 80 | 140 |
| 70 | 80 | 90 | 160 |
| 80 | 90 | 100 | 180 |
| 90 | 100 | 110 | 200 |




کله چي منحني خط ښي طرف ته حرکت وکړي نو قيمت ثابت خومولدکوشش کوي چي د (۵۰) ټنو په ځاي (۶۰) ټنه بازار ته عرضه کړي ددي يواځني علت د توليدي عواملو د نرخ ټيټوالي د اقليمي شرايطو ښه والي د زياتو حاصلاتو لاسته راوړل دي چي په دي وجه مارکيټ ته عرضه زياتوي په ثابت نرخ سره خو کچيري مقدار د عرضه د مولد جنس بازار ته (۵۰ ) ټنو په ځاي (۴۰ ) ټنه بازار ته وړاندي کړي علت يي د توليدي عواملو د قيمت جيګوالي او د اقليمي شرايطو خرابوالي او همدا رنګه د حاصلاتو کموالي کيداي شي لکه په لاندي جدول کي ښودل کيږي.

**A**- هغه عوامل چی دعرضی دزیاتوالی سبب کیږی

۱- کرنیز تکنالوژي تطبيق

۲- دتولیدی موادو دنرخ ټیټ والی

۳- دښه اقلیمی شرایط موجودیت

۴- ښه سرکونه او ښه ترانسپورتی وسایل

۵-دپراسس دعملی اسانتیا

**B**- هغه عوامل چی دعرضی دکموالی سبب کیږي

۱- عنعنوی کرنه

۲- دتولیدی موادو دنرخ لوړوالی

۳- وچکالی

۴- دناروغیو او افتونو موجودیت

۵- خراب ترانسپورتی وسایل

۶- دسرکونو عدم اتصال مارکیت ته

C- دعرضی تحلیل

۱- دعرضی حجم : دمصرف کوونکی دتقاضا سره سم جنس مارکیت ته عرضه

۲- دعرضه کوونکی شمیر: هغه کسان چی مارکیت جنس عرضه کوی شمیری معلوم وی

۳- دعرضی ساحه: معلوم شی چی محصول په څو هکتاره ځمکه کی کرل شوی دی

۴- دعرضی وخت: جنس هغه وخت مارکیت ته عرضه شی چی تقاضا ورته موجود وی

۵- دعرضه شوی جنس نوعیت: ښه جنس بایډ مارکیت ته وړاندی شی

## دعرضي د قانون بعضي استثنات:

د عرضي قانون په بعضي حالاتو كي بلكل نه عملي كيږي دغي ته د عرضي استثنات وايي.

۱ - **د پيسوضرورت**: په ځيني حالاتو كي خرڅونكي پيسو ته اشد ضرورت لري نو په دي خاطر په ډير كم نرخ سره زيات مقدار شيان بازار ته د خرڅلاولپاره وړاندي كوي نو پدي وخت كي د عرضي قانون د تطبيق وړنه ده.

۲ - **دراتلونكي خطراتو ويره**:كچيره توليدونكي يا خرڅوونكي ته په راتلوونكي كي د قيمتونو د نزول ويره وي نو فوراً خپل مال خرڅوي اګركه قيمت هم ونه ولري.

۳ - **د ځاي انتقال**: كه چيرته يو تجاردكاروبار يا په بله وجه كوم بل هيواد ته ځي او ددي دمال د ساتني څوک نه وي نو هغه جنس په كم قيمت خرڅوي.

۴ - **دجنګ وخت**:د جنګ په وخت كي خلكو ته ځاني خطرات پيښيږي نو پدي وجه په دغه حالاتو کی تجار او مولدين جنسو نه ژردخرڅلاو لپاره وړاندي كوي او په كم قيمت سره خپل مال خرڅوي.

**Rise in supply**: د عرضي زياتوالی په لاندي دوه قسمونو صورت نيسي

۱- قيمت ثابت او عرضه زياته شي

۲- عرضه ثابته او قيمت كم شي

۱- **قیمت ثابت او عرضه زیاته شي**:کچیري د یو جنس قیمت ثابت وي او عرضه زیاته وي یعني که د یو کیلو بوري قیمت(۲۰ ) افغاني وي او عرضه (۱۰۰ ) کیلوګرامه وي او کچیري په همدغه قیمت باندي دعرضه مقدار( ۲۰۰) کیلوګرام شي نو د عرضي د قانون په اساس کله چي قیمت لوړیږي نو عرضه باید زیاته شي نو دلته قیمت ثابت دي او ځني وجوهاتو په اساس عرضه زیاته شوي ده نو دلته باید عرضه زیاته شوي نه واي نو دي ته د عرضي زیاتوالي وایي.

| Supply/kg | Price AFs/kg |
|---|---|
| 100 kg | 20 AFs |
| 150 kg | 20 AFs |
| 200 kg | 20 AFs |
| ۲۵۰ | 20 AFs |

۲- **عرضه ثابت او قیمت کم شي**:کله چي د یو جنس په قیمت کي تغیر راشي مګر عرضه ثابته وي یعني کله چي د یوکیلو ګرام بوري قیمت (۲۰) افغاني وي عرضه (۱۰۰) کیلوګرامه وي که چیري قیمت (۱۶) افغاني شي عرضه ثابته ده او په ترتیب سره قیمت (۱۲) افغاني ته راښکته شي او عرضه هم ثابت وي نو د عرضي د قانون په اساس د قیمت د کمیدو سره عرضه باید کمه شي لیکن دلته عرضه د قیمت په کمیدو سره ثابته پاتي ده نو ددي وجي دي ته د عرضي ثبات وایی.

| Supply/kg | Price AFs/kg |
|---|---|
| 100 kg | 30 AFs |
| 100 kg | 16 AFs |
| 100 kg | 12 AFs |
| 100 kg | 10 AFs |

**Fall in supply**: د عرضي کموالی په لاندي ډول پیدا کیږي.

۱- قیمت ثابته او عرضه کمیږي.

۲- قیمت ډیریږي عرضه ثابته وي.

چي په لاندي جدول کي ښودل کیږي

| Supply/kg | Price af/kg |
|---|---|
| 100 | 20 |
| 80 | 20 |
| 60 | 20 |
| 40 | 20 |

په پورتني جدول کي کله چي د جنس قيمت (۲۰) افغاني في کيلوگرام وي نو عرضه (۱۰۰) کيلوگرام ده نو که قيمت ثابت وي نو عرضه په ترتيب سره ۸۰-۶۰-۴۰ کيلوگرام ته کميږي نو د عرضي قانون په اساس کله چي قيمت کميږي نو عرضه ورسره کميږي دلته قيمت ثابت مگر عرضه کمه شوي دي چي دي ته د عرضي تيټوالي وايي.

**۲- قيمت صعود کوي عرضه ثابته وي**: کچيري بوره في کيلوگرام (۱۰) افغاني وي عرضه زمونږ بيا (۱۰۰) کيلوگرام کيږي نو قيمت که (۱۵) افغاني ته اوچت شي نو عرضه (۱۰۰) کيلوگرام ده يعني د قيمت په لوړيدو سره عرضه ثابته ده نو د عرضي د قانون په اساس کله چي قيمت لوړيږي د جنس د مقدار عرضه بايد زياته شي خو دلته ثابت حالت پاتي ده نو دي ته د عرضي ثبات وايي .

(قيمت صعود کوي خو عرضه ثابته ده)

| Supply/kg | Price af/kg |
|---|---|
| 100 | 35 |
| 100 | 30 |
| 100 | 25 |
| 100 | 20 |
| 100 | 15 |
| 100 | 10 |

## د عرضي او تقاضا تا ثيرات په نرخ معادل باندي:

کله چي د عرضي او تقاضا ترمينځ تعادل راشي يو حقيقي قيمت ته رسيږي کچيري دغه توازن نه وي نو عرضه او تقاضا خپل تاثيرات په نرخ معادل ښيي او دغه توازن يوځل بيا جوړيږي مگر بعضي وخت په عرضه او تقاضا کي تغيرات راځي او د پخواني توازن د نقطي په ځاي يوه نوي نقطه د توازن مستقيمه راځي او يو نوي توازن يا نرخ معادل منځته راځي چي دغه تغيرات د لاندي موضوعاتو په واسطه تشريح کولاي شو.

**۱- د تقاضا د تغيراتو تاثير**: د تقاضا د تغيراتو تاثيرپه دوه ډوله ده.

**۱- د تقاضا د زياتيدو تاثيرات**: کله چي تقاضا زياته شي او عرضه ثابته وي نو په معادل قيمت کي تغيرات رامينځ ته کيږي او د تقاضا خط ښي خواته حرکت کوي او معادل قيمت او معادل مقدار هم زياتيږي چي ددي وضاحت د لاندي گراف په واسطه کيداي شي P هم صعودي حالت لري او Q هم ضعودي حالت لري.



**۲- د تقاضا د کمیدو تاثیرات**: که چیري عرضه ثابته او تقاضا کمه شي نو په معادل قیمت کي تغیرات رامینځته کیږي او دتقاضا خط چپ خوا ته حرکت کوي او د تقاضا د کمیدو سره معادل قیمت او معادل مقدار هم کمیږي چي د دي وضاحت د لاندي ګراف په واسطه تر سره کیداي شي P نزولي حالت Q هم نزولي حالت لري




**۲- د عرضي د تغیراتو تاثیرات**:په نرخ باندي د عرضي دتغیراتو تاثیرات په دوه ډوله ده.

**۱- د عرضي د زیاتیدو تاثیرات**:که چیرته تقاضا ثابته وي او عرضه زیاته شي نو د متوازن قیمت کي تغیرات را مینځ ته کیږي او معادل قیمت کمیږي او د عرضي خط ښي خواته حرکت کوي چي په لاندي ګراف کي ښودل کیږي پدي ګراف کي Pنزول او Q صعود کوي.




**۲- دعرضه د کمیدو تاثیرات**: که چیرته تقاضا ثابته وي او عرضه کمه شي نو په مقدار معادل او په نرخ معادل کي تغیرات رامینځ ته کیږي په نرخ معادل کي زیاتوالي راځي چي په لاندي ګراف ښودل کیږي :

پدي ګراف کي (P ) صعود او مقدار نزول کوي



## **په نرخ معادل باندي د عرضه او تقاضا دواړه د تغیراتو تاثیرات**:

**۱- د عرضي او تقاضا مساوي زیاتیدنه**: که چیري په عرضه او تقاضا کي په مساوي نسبت زیاتیدنه رامینځ ته شي نو په نرخ کي تغیرات نه رامینځ ته کیږي بلکه معادل مقدار زیاتیږي چي په لاندي ګراف کي ښودل کیږي په دي کي Pثابت خو مقدار تقاضا زیات شویدي.




**۲- د عرضي او تقاضا مساوي کمیدونه**:که چیري د یو جنس په عرضه او تقاضا کي مساوي کمیدونه رامینځته شي نو په نرخ کي تغیرات نه رامینځ ته کیږي بلکه په معادل مقدار دعرضي او تقاضا کي کمي را مینځته کیږي چي په لاندي ګراف کي ښودل کیږي. چي په دي ګراف کي قیمت ثابت او تقاضا او عرضه کمیږي.




**۳- د عرضي په نسبت په تقاضا کي ډیر زیاتوالي**:

که چیري د یوجنس په عرضه او تقاضا کي په یو وخت غیر مساوي بدلوي رامینځ ته شي مګر په تقاضا کي زیاتیدنه نسبت عرضي ته زیاته وي نو په دي وخت کي د جنس قیمت کي زیاتوالي راځي د عرضي او تقاضا په اندازه کي هم زیاتیدنه رامینځته کیږي.




**۴- د تقاضا په نسبت په عرضه کي ډېر زياتوالي**: که چيري د عرضي په نسبت کي زياتوالي نسبت د تقاضا د زياتوالي نسبت ته زياته وي نو د هغه جنس قيمت کميږي او د عرضي تقاضا په اندازه کي زياتوالي راځي.




**۵- عرضي په نسبت په تقاضا کي ډېره کميدنه**: که چيري د عرضي په نسبت په تقاضا کي زياته کميدنه رامينځ ته شي نو نرخ کميږي او د عرضي او تقاضا په اندازه کي کمي رامينځ ته کيږي.



**۶ - د عرضي په نسبت په تقاضا کي په کمه اندازه کميدنه:**

که چيري په عرضه او تقاضا کي کموالي رامينځ ته کيږي خو په تقاضا کي د عرضي په نسبت لږ کموالي رامينځ ته شي نو په دي صورت کي نرخ زياتيږي نو د عرضي او تقاضا په اندازه کي کموالي واقع کيږي.



**۷- په عرضه کي کموالي او تقاضا کي زياتوالي:**

که چيري په عرضه او تقاضا کي په مساوي اندازه تغيرات خو په مخالف جهت رامينځ ته شي يعني څومره چي په عرضه کي کموالي راځي په هماغه اندازه تقاضا زياته شي نو په معادل نرخ کي زياتوالي راځي چي په لاندي ګراف کي ښودل کيږي مقدار معادل به ثابت وي.



**8- په عرضه کي لږه زياتوالي او تقاضا کي زياته کميدنه:** که چيري د يو جنس په عرضه کي لږ زياتوالي راشي او په تقاضا کي زياته کميدنه رامينځ ته شي نو په دي حالت کي په معادل قيمت کي کموالي رامينځ ته کيږي په



**نتيجه کی په عرضه او تقاضا په مقدار کی کموالی رامنځ ته کيږی چي په دغه ګراف ښودل شوی**

**تقـــــاضـــــا Demand**:

د انسانانو د خواهشاتو لړي ډېره اوږده سابقه لري د انسان د خواهشاتوپه واسطه د ضرورياتو لړي پاي ته نه رسيږي خو حقيقت دادي چي د ضرورياتو لپاره صرف د مطلوب شيانو حتمي نه دي بلکه يوڅونورو شيانو ته هم ضرورت ليدل کيږي دادرسته ده چي ترڅو د يو شي دحاصليدو خواهش پيدا نشي د تقاضا هيڅ سوال نه پيداکيږي لاکن صرف خواهش تقاضا نشي کيداي د خواهش د تقاضا د جوړيدو لپاره دوه شرطونه ضروري دي.

الف- د اخيستلو اراده

ب- د اخيستلو توان

پروفيسور Bencom د تقاضا تعريف په لاندي ډول کوي.

Demand په خاص قيمت اووخت سره د اشياوو هغه مقدار ته وايي د کومو اخيستلو لپاره چي مصرف کونکي اماده وي.

اخيستلو اراده + اخيستلو قدرت+ خواهش = تقاضا

**د تقاضا او قيمت ترمينځ اړيکي**:

تقاضا د قيمت سره ټينګي اړيکي لري که د يو شي د قيمت اندازه معلومه نه وي نو مونږ د نوموړي شي د تقاضا اندازه نشو ټاکلي د قيمت د ذکر کولو څخه بغير د تقاضا ذکر کول هيڅ معني نلري

مثلا: دا ويل چي د غوړيو تقاضا ۱۰کيلو ګرامه ده دا بي معني ده البته داسي ويل درست دي چي د في ګرام غوړي قيمت ۵۰افغاني دي او 10 kg ضرورت دي ددي وجهه داده چي هر کس د يو ځيز قيمت ته ګوري او ځيز تر لاسه کوي.

**د تقاضا جدول**:

ددي جدول څخه داسي معلوميږي چي تقاضا د نرخ سره معکوسه رابطه لري.




| Demand/kg | Price af/kg |
|---|---|
| 10 | 50 |
| 20 | 40 |
| 30 | 30 |
| 40 | 20 |
| 50 | 10 |

قيمت په لوړيدو سره تقاضا کميږي او د قيمت په کميدو سره تقاضا زياتيږي د تقاضا د جدول څخه مطلب داسي فهرست دي چي په هغه کي د يو شي د مختلفو قيمتونو لپاره تقاضا ښودل کيږي د تقاضا جدول په دوه ډوله ده.

۱- دتقاضاانفرادي جدول.   ۲- دتقاضا ګروپي جدول

**د تقاضا انفرادي جدول**: ددي جدول څخه مطلب هغه فهرست دي چي په هغه کي دا ليکل کيږي چي يو کس يو شي په مختلفو قيمتونو سره څومره مقدار اخلي مونږ دلته د انفرادي جدول مثال د انګورو څخه يادونه کوو.

| Demand/kg | Price af/kg |
|---|---|
| 4 | 50 |
| 8 | 40 |
| 12 | 30 |
| 16 | 20 |

پورتني جدول څخه معلوميږي که قيمت ۵۰افغاني وي نو تقاضا ۴کيلوګرام ده او کله چي قيمت ۲۰افغاني ته نزول وکړي نو تقاضا ۱۶کيلوګرام ته لوړيږي.

**د انفرادي تقاضا منحني**:کله چي دتقاضا جدول معلومات په ګراف کي وښودل شي نو د تقاضا منحني لاسته راځي که انفرادي تقاضا دجدول معلومات په ګراف کي وښيو نو انفرادي تقاضا منحني معلوميږي.




**ګروپي تقاضا**:په ګروپي جدول کي ديو ګروپ د ټولو اخيستونکي تقاضا ښودل کيږي مثلا په مارکيټ کي صرف (۵) اخيستونکي موجود دي
هغه د تقاضا په اساس مونږه د ګروپي جدول تقاضا په لاندي ډول جوړو.

**جدول**

| Price/kg/af | ۱ اخيستونکي | ۲ اخيستونکي | ۳ اخيستونکي | ۴ اخيستونکي | ۵ اخيستونکي | ټول Demand |
|---|---|---|---|---|---|---|
| 50 | 10 kg | 7 kg | 6 kg | 12 kg | 8 kg | 43 kg |
| 40 | 12 ″ | 10 ″ | 9 ″ | 14 ″ | 14 ″ | 59 ″ |
| 30 | 14 ″ | 14 ″ | 13 ″ | 16 ″ | 16 ″ | 73 ″ |
| 20 | 16 ″ | 16 ″ | 17 ″ | 20 ″ | 20 ″ | 89 ″ |
| 10 | 18 ″ | 20 ″ | 21 ″ | 25 ″ | 25 ″ | 109 ″ |

دپورتني جدول څخه معلوميږي چي کله قيمت کميږي نو تقاضا زياتيږي او کله چي قيمت زياتيږي تقاضا کميږي کچيري په ګراف کي وښيو نو دغه ګراف ته د تقاضا ګروپي خط وايي.




**د تقاضا قانون**:

د مصرف کونکي هغه ميلان ښکاره کوي چي د هغه په اساس هغوي د يو جنس په قيمت کي د اضافه والي او کموالي سره خپله تقاضا کموي زياتوي عامه مشاهده ده کله چي د يو جنس قيمت لوړ شي تقاضا کميږي او که قيمت ټيټ شي تقاضا زياتيږي بنا پردي د قيمت او تقاضا ترمنځ معکوسه رابطه وجود لري پروفيسور مارشال د تقاضا د قانون تعريف داسي کوي. دقيمت او تقاضا ترمينځ دغه رابطه د تقاضا د قانون په نوم ياديږي.

د تقاضا جدول

| Demand/kg | Price af/kg |
|---|---|
| 10 | 50 |
| 20 | 40 |
| 30 | 30 |
| 40 | 20 |
| 50 | 10 |

دپورته جدول څخه داسي نتيجه تر لاسته کيږي چي تقاضا د نرخ سره معکوسه اړيکه لري

**د تقاضا منحني او جدول:**

د تقاضا جدول: عبارت د هغه ارقاموڅخه ده چي د سروي په واسطه د مارکيټ څخه ترلاسه کيږي.

**منحني تقاضا**: داد يو مستقيم خط په واسطه چي د جدول په اساس رامينځه کيږي ښودل کيږي.

| Demand/ton | Price af/kg |
|---|---|
| 10 | 100 |
| 9 | 110 |
| 8 | 120 |
| 7 | 130 |
| 6 | 140 |
| 5 | 150 |




کله چي قیمت ۱۰۰افغاني وي تقاضا ۱۰ټنهوي خو کله چي قیمت ۱۵۰افغاني ته صعود کوي نو تقاضا ۵ټنوتهر اښکتهکیږي لدي څخه ښکاره شو چي د تقاضا خط د چپ څخه ښي طرف ته حرکت او له پورته څخه ښکته راځي.

**د تقاضا د قانون استثنات**:

حال دا چي د تقاضا د قانون مطابق د قیمت د لوړیدو سره تقاضا کمیږي او د قیمت د کمیدو سره تقاضا لوړیږي خو یو څو حالتونه داسي دي چي د تقاضا قانون پري نه تطبیقیږي.

**الف – خراب اجناس**:د خرابو اجناسو ډیر کم قیمت په صورت کي دا قانون نه تطبیقیږي

مثلاً: یوه غریبه کورني دغنمود اوړو پرځاي باجره استعمالوي ځکه ددي کورني عاید کم دي او غنم نشي استعمالولي. کچیري دغنم قیمت کم شي نو دا کورني به پدي وتوانیږي چي د باجري پر ځاي د غنم استعمالول شروع کړي او پدي توګه د باجري د قیمت په کمیدو سره ددي کورني تقاضا کمیږي.

**ب- لوړ قیمت لرونکي اجناس**: کوم اجناس چي ډیر قیمتي وي دا صرف د نمایش لپاره استعمالیږي لکه لالونه او الماس که څومره ددي جنس قیمت کم شي نو غریب خلک یي نه استعمالوي نوددي لپاره د قیمت په کمیدو سره تقاضا نه زیاتیږي او پدي د تقاضا قانون نه تطبیقیږي.

**ج- راتلونکي قیمت**:که د یوجنس د قیمت د لوړیدوامکان وي پدي د تقاضا قانون نه تطبیقیږي دا ځکه چي د تقاضا د قانون په اساس کله چي قیمت لوړشي نو تقاضا کمیږي خو د لته خلک دا طمع ولري چي په آینده کي به د جنس قیمت لوړشي نو دي جنس ته به په هماغه قیمت چي مخکي وه تقاضا زیاته شي.

د - داجناسوقلت:کله چي دخلکوسره داخطر پیدا شي چي په آینده کي به ددي جنس قلت وي نودقیمت په لوړیدو سره به هم خلک د جنس تقاضا زیاته کړي نو د لته دتقاضا قانون نه تطبیقیږي.

# اوم فصل

## دمارکیټنګ مصارف

## Marketing Cost

دکرنیزو محصولاتو مصارف د مارکیټنګ په پروسه کي د ډېر عمده موضوعاتو د جملي څخه

شمیرل کیږي کله چي جنس دتولید د ساحي څخه حرکت کوي اوتر اخر مستهلک یا مصرف کوونکي پوري رسیږي څو واري جنس اخیستل کیږي او پلورل کیږي او محصول دمولد څخه خریداري کیږي، عمده فروش باندي خرڅیږي، وروسته عمده فروشان، پرچون فروشانو باندي خرڅوي او بلاخره پرچون فروشان جنس مصرف کوونکي باندي خرڅوي او په هره مرحله دخرید او فروش کي د کمیشن کارانو اوبروکرانو ګټه، مصارف د بسته بندي، مصارف د انتقال اونورو مصارف په جنس باندي علاوه کیږي.




### دمارکیټنګ موثریت:

ټول هغه مصارف چي دجنس په اړوند د مارکیټنګ په چینلونو کي صورت نیسي پرته له دي چه د مصرف کوونکي په تقاضا کي کموالي رامنځته شي د مارکیټنګ موثریت بلل کیږي او دلاندي اجزاو څخه تشکیل شوي دي.

۱- د محصولاتو دراټولوني مصارف

۲- دانتقال مصارف

۳- دبسته بندي مصارف

۴- دسورت او درجه بندي مصارف

۵- دذخیري مصارف

۶- د کمیشن کارانو او دلالانو ګټه

۷- دټکس او محصول مصارف

۸- دعمده فروشانو او پرچون فروشانو ګټه

مصارف د مارکیټنګ تفاوت د نرخ د تولید دنقطي او اخرین مصرف کوونکي څخه عبارت دي چي جنس ترلاسه کړي.

دمثال په توګه که چیري د یو من انګورو نرخ د شمالي په باغ کي 100 افغاني وي او کله چي اخرین مصرف کونکي په جلال اباد کي یو من انګورو په 150 افغاني د پرچون فروشانو څخه ترلاسه کوي دغه 50 افغاني تفاوت دمارکیټنګ د مصارفو څخه عبارت دي چي پدغه 50 افغاني کي ټول مصارف د بسته بندي، جمع اوري، انتقال، محصول د کمیشن، د عمده فروش او پرچون فروش ګټه ټول پکي شامل دي.

مصارف دمارکیټنګ په مختلفو جنسونو کي فرق کوي ځیني محصولات چي دطراوت او تازه ګي خصلت لري پروسس او خاص پاملرني ته دذخیري په وخت کي ضرورت لري او همدارنګه په مخصوصو یخچالو لرونکي ترانسپورتي وسایلو کي باید انتقال شي چي دعادي اجناسو لکه دحبوباتو په تناسب مصارف د مارکیټنګ ورباندي زیات راځي په لاندي جدول کي د مختلفو اجناسو مصارف ته توجه وکړي.

مصارف د مارکیټنګ په مختلفو جنسونو کي او همدارنګه دمولدینو برخه د فیصدي په لحاظ سره فرق او تفاوت لري چي په جدول کي ښودل شوي دي.

$P = \frac{C-M}{C} X\ 100$

P = producer Value

C= Consumer Cost

M = Marketing bill

دیودانه هاګي قیمت په پرچون فروشي کي The price of an egg in consumer price = 8Afs

مصارف د مارکټنګ The market bill is 38%

دمولد برخه پیدا کړي؟ Find the producer share ?

*　　*　　*

38 % of 8 = 3.04 AF

$p = \frac{8-3.04}{8} x\ \ 100$ = 62 % or 4.96 AF

- Consumer price = 8 Af one egg = (100%)
- MKT bill = 3.04 Af or (38%)

- Producer share = $\frac{4.96 \text{ Af}}{8{,}00}$ or (62%)

8,00 ⟹ 100 %

$$P = \frac{C-M}{C} \times 100$$

| ملاحظات | دپرچون نرخ | دمولد سهم په فيصد | مصارف دمارکيتنګ په فيصد | دتوليد نوم |
|---|---|---|---|---|
| يا 100% | 8 | 62% | 38% | هګي |
| دمولد برخه =100-MC | | 58% | 42% | دغوايي غوښه |
| | | 45% | 55% | مايع شيدي |
| | | 35% | 65% | وړه |
| | | 33% | 67% | نارنج |
| | | 16% | 84% | رومي بانجان |
| | | 8% | 92% | دجوارو پلي |

نوت: د پرچون فروش نرخ ديوي داني هګي 8 افغاني يا 100% ده

مثال: که ديو داني هګي نرخ په پرچون فروشي کي 8 افغاني وي د مولد برخه پدي کي به څومره وي

دمولد برخه –100% - 38% = 62% #. 100 %

8 = 100%

۱-دپرچون فروش نرخ = دمولد نرخ + مصارف دمارکيتنګ3.04 = $X = \frac{38*8}{100}$

۲-دمولد نرخ = دپرچون فروش نرخ – مصارف دمارکيتنګ38% = X

8- 3.04=4.96 AFمصارف دمارکيتنګ - 100%يا

مثال:- 8- 3.04= 4.96 100% - 38% = 62%

1- consumer price = 8Afs or 100%
2- Mkt bill = 3.04Afs or 38%
3- prodcer share = 4.96AFs or 62%

مصارف دمارکيتنګ پدي پوري اړه لري چي جنس څه نوع خدمات او مصارف ته ضرورت لري مثلا مصارف مجموعي دمارکيتنګ په کال 1970 په امريکا کي 300 مليارده ډالر وه چي په دي کي دمارکيتنګ خدمات او وظايف برخي بيل بيل معلوميږي

1. Processors = 34%
2. Retailers = 33%
3. Transprotation = 11%
4. Wholesalares = 11%
5. Local Assembless = 6%
6. Miscellaneous = 5%

100%

مصارف دمارکیټنګ په هغه محصول کې دچې د مارکیټ څخه زیاته فاصله لري او زیات پروسس ته ضرورت `لري اود زیات وخت لپاره ذخیره شي او همدارنګه په انتقال او ذخیره کې دخوسا کیدو د مخنیوي په خاطر زیاتې پاملرني ته ضرورت لري اوځیني محصولات چې نرخ یې دحجم په تناسب کم وي اوپه انتقال او ذخیره کې وربانديزیات مصرف راشي ددغیسي اجناسو مصارف مارکیټنګ لوړوي.

**مصارف دمارکیټنګ دیو محصول د لاندي خصوصیاتو پوري اړه لري**:

۱- **پروسس اودمارکیټنګ خدمتونه**: هدف دپروسس تغیر شکل او مفیدیت اضافه کول په جنس کې دي ترڅو د کال په اوږدو کې د مصرف کوونکي تقاضا ته مثبت ځواب وویل شي د پروسس مثالونه شیدي په مستي، میوه مربا او جوس، سبزیجات په اچار اوچدني اوداسي نور چې داکار ایجاب دمصارف کوي چې څه مقدار د پیسي په پروسس کې مصرف کیږي.

۲- **دمحصول حجم دجنس دارزښت په تناسب**: ځني محصولات چې حجم یې زیات او نرخ یې کم وي په ترانسپورتیشن او ذخیره کې مصرف وربانديزیات راځي نوځکه مصارف د مارکیټنګ پدغسي محصولاتو کې یو زیان منونکي خصوصیت لري مثلا دیو من لرګي نرخ نظر لرګي حجم ته ډیرټیټ دي چې په انتقال او ذخیره کې مصارف وربانديزیات راځي.

۳- **دخوسا کیدو خصوصیت**:-هغه محصولات چې دخوسا کیدو خصوصیت لریچې زر خوسا کیږي مصارف دمارکیټنګ وربانديزیات راځي مثلآ لبنیات، تازه میوه ، میوه جات، سبزیجات نظر غله جاتو ته زیات پرمصرف دي ځکه چې په سړو خونو کې ذخیره کیږي او په یخچال لرونکي وسایل د ترانسپورتیشن کې انتقالیږي.

۴- **دمحصول موسمي خصلت**:- یو شمیر محصولات چې د کال په اوږدو کې یواځې په موسم کې زیات مقدار مارکیټ ته عرضه کیږي نرخ باندي منفي اغیزه کوي او وروسته دځو مودي دتیریدو څخه مقدار دعرضه کمیږي

او نرخونه بیرته صعود کوي پدي خاطر چي دکال په اوږدو کي د مشتریانو تقاضا ته مثبت ځواب وویل شي او دنرخونو دنو ساناتو څخه مخنیوي وشي جنس باید ذخیره شي چي داکار مصارفو ته ضرورت لري.

په لاندي مثال کي تاسي دیوي څخه ترپنځه پوري مقیاس د مارکیټنګ دخدماتو په اړوند په مختلفو کرنیزو محصولاتو کي پکار واچوي

۱- دغوايي غوښه۲ –توربانجان۳- وچه ډوډي۴- دجوارو وړه۵- دسپین غر غوړي۶- دسوند لرګي

په ذکر شوي محصولاتوکي د پروسس او خدماتو، دخوسا کیدو خصوصیت، جنس دنرخ اود هغه دحجم په مقایسه او همدارنګه د محصولاتو موسمي بودن خصوصیت په نظر کي ونیسي او دجنس مصارف دمارکیټنګ پیداکړي

مونږ دلته دجوارو وړو، مصارف د مارکیټنګ پیداکوو:

1. Processing and marketing servics........... 1 – 2 -3- 4 – 5 Increasing marketing cost ⟶
2. Perish ability..........1- 2 - 3 - 4 - 5
3. Bulk ness in relation to value.............. 1 -2- 3 - 4 - 5
4. Seasonality.......... 1 – 2 -3 - 4 -5

⟵ Decreasing marketing cost

Score (5) is the highest value (100%)

Score (1) is the lowest value (20%)

مجموع دنمرات11 = 3+1+2+5

20 د سل فیصده معنا ورکوي 11 نمبر مجموع نمرات څومره کیږي

20 --------- 11

%100-------X

$X = \frac{100\ X\ 11}{20} = 55\%$

دمارکیټنګ مصارف دجوارو په اوړو کي 55% اود مولد برخه کي 45% تخمين شوي دي په لاندي شکل کي د مارکیټنګ مصارف دمارکیټنګ دخدماتو په اساس اټکل شوي




مصارف د مارکیټنګ د خدماتو له لحاظه د لاندي اجزاو څخه تشکيل شوي دي

۱- مصارف دحمل او نقل ۲- مصارف د پروسس ۳- مصارف دذخيره

۴- مصارف دمحصولاتو جمع اوري ۳- مصارف دعمده فروشي ۶- مصارف د پرچون فروشي

A. مصارف د مارکیټنګ د نوع وظایف له لحاظه عبارت دي له




B. مصارف د مارکیټنګ دعمده مصارفو د فکتورونو په لحاظ عبارت دي



**موثريت د مارکتنګ** :-که چيري په يو جنس باندي 8000 افغاني خرچه وشي په مقابل کي 12000 افغاني اضافي د ارزښت په يو جنس کي ترلاسه کيږي اويا داچي دموثرو سيستمونو په تطبيق سره د 8000افغاني په مصارفو په ځاي 5000 افغانيو ته تقليل وومومي او په مقابل کي 12000 افغاني اضافي ارزښت په توليداتو کي ايجاد شي، د مارکيټنګ موثريت به فوق العاده زيات وي

اضافي ارزش چي په يو جنس کي ايجاد کيږی

$$\text{موثريت دمارکيټنګ} \quad \frac{12000}{8000} \quad ١٥٠ = 100x$$

دمارکيټنګ د خدماتو مصارف

A. دمارکيټنګ د خدماتو مصارف –8000 Af

B. اضافي ارزښت چي ترلاسه کيږي12000 AF

دمثال په توګه که چيرته يو باغدار ديو کيلو ګرام مڼه په مقابل کي (15) افغاني لاسته راوړي او اخري مصرف کوونکي هماغه يو کيلو ګرام مڼه په (20) افغاني د پرچون فروشي څخه لاسته راوړي دغه (5) افغاني تفاوت دنرخ عبارت د مجموع خدماتو څخه دي لکه بسته بندي، پروسس، ذخيره، مفاد دعمد فروشي، مفاد د پرچون فروشي، دلالانو او جلابانو ګټه او داسي نور....

هغه محصول چي د مارکيټنګ په چينل کي نه داخليږي مستقيماً د مولد څخه مستهلک ته رسيږي پدي کي مصارف د مارکيټنګ صفر يا ډير کم وي

دتکنالوژي د پيشرفت سره خلک پروسس شوي شيان سره علاقه پيدا کوي د تکنالوژي پيشرفت ديو مملکتدصنعتي کيدو نښه ده او په صنعتي هيوادونو کي خلک د زيات مصروفيت له کبله زياتره پروسيس شوي غذا چي وخت يي ضايع نشي تقاضا کوي اومصرف کوي.

په لاندي ګرافونو کي د 1959 کال څخه تر 1961 کال پوري مصارف د مارکيټنګ په متحده ايالاتو کي ښودل شوي دي

## دمارکيټنګ مصارف Marketing Cost

| Years | Total market مصارف مارکيټنګ bill in billion US $ A | دفارم نرخ Value of farm in billion US $ B | دپرچون فروش نرخ Consumer retailer rate in bln US $ C | دمولد برخه په فيصد Farmers share in % D |
|---|---|---|---|---|
| 1950 | 23.9 | 17.6 | 41.5 | 42.4% |
| 51 | 26.4 | 20.0 | 46.4 | 43.1% |
| 52 | 28.3 | 19.9 | 48.2 | 41.3% |

| 53 | 29.3 | 19.0 | 48.3 | 39.3% |
|---|---|---|---|---|
| 54 | 30.4 | 18.4 | 48.8 | 37.7% |
| 55 | 32.2 | 18.3 | 50.5 | 36.2% |
| 56 | 34.0 | 18.7 | 52.7 | 35.5% |
| 57 | 35.6 | 19.5 | 55.1 | 35.4% |
| 58 | 37.6 | 20.5 | 57.7 | 35.9% |
| 59 | 38.4 | 20.0 | 58.4 | 34.2% |
| 60 | 39.5 | 20.7 | 60.2 | 34.2% |
| 61 | 41.3 | 20.9 | 62.2 | 33.6% |

دامريکي کرنيز محصولات چي مارکيټ ته داخل شويدي اوپکي مصارف د مارکيټنګ، دفارم نرخ پرچون فروش نرخ اود مولد برخه په فيصد ښودل شويدي په کال 1961

1. `مصارف دمارکيټنګ= 41.3 billion US $ 66%
2. دفارم نرخ = 20.9 billion US $ 34%
3. دپرچون فروش نرخ= 62.2 billion US $ 100%

مصارف دمارکيټنګ + دفارم يا مزرعي نرخ = د پرچون فروش نرخ 62.2 = 20.9+41.3

1. دمولد برخه = 100% - MC    62.2 billion = 100% پرچون

62.2-41.3= 20.9    41.3 billion مصارف

100-66% = 34%    X = 66%

$$P = \frac{C-M}{C} \times 100 \geq \frac{62.2-41.3}{62.2} \times 100 \geq P = 33.6\%$$

P = Producer share = 33.6%

M = Marketing cost = 66.3%    MC=66.3%

C = Consumer price= 100%    consumer price=66.7+66.3=100%

1.




$$W\ x = \frac{Q2-Q1}{Q2+Q1} \times \frac{P2+P1}{P2-P1}$$

P = .70

P2 = .40

Q1= 4 kg

Q2 = 14 kg

Xy = P1= .40

P2=.35

Q1= 14

Q2= 16

Yz= P1=.35

ĐP=P2-P1=0.15-0.35=-0.20

%ĐP=57.14

ĐQ=Q2-Q1=24-16=8

%ĐQ=60%

$$Wx= \frac{14-4}{14+4} \times \frac{.40+.70}{.40-.70} = \frac{10}{18} \times \frac{1,10}{-.30} = \frac{11}{5.4} = -\ 2.03$$

| ضریب ارتجاعیت تقاصا= **- 2.03 , Ed ≥ 1 Elastic demand** |
|---|

$$Xy = \frac{16-14}{16+14} \times \frac{.35+.40}{.35-.40} = \frac{2}{30} \times \frac{.75}{.05} = \frac{1.50}{1.50} = 1 \quad Yz = \frac{Q1-Q2}{Q2+Q1} \times \frac{P2+P1}{P2-P1}$$

$$\frac{16-14}{16+14}$$

**1 - ضریب ارتجاعیت**

$$\frac{24-16}{24+16} \times \frac{.15+.35}{.15-.35} = \frac{8}{40} \times = 1 + \frac{.50}{-.20} = \frac{400}{800} = \frac{1}{2}$$

**Ed = - 1 Unitary elastic demand**

Ed ≤ 1 = .5 inelastic demand

<u>WX Zone</u>

Ed ≥ 1 Elastic

ΔP = P2 – P1 = .40-.70 = - .30

%ΔP = - 30/.70x100 = 42.8%

ΔQ=Q2 – Q1= 14-4 = 10

% ΔQ = $\frac{10}{4}$ X 100 = 250%

%ΔQ= Q2-Q1/ Q1x100

<u>XY Zone</u>

ΔP=P2-P1 =.30-.40=-.05

%ΔP=-.05/.40x100 = 12.5%

ΔQ=Q2-Q1 = 16-14=2

%ΔQ=2/14x100=14.2%

%ΔP= P2-P1/P x100

<u>YZ Zone</u>

ΔP=P2-P1=15-.35=-.20

%ΔP= - .20/.35x100 = 57%

ΔQ=Q2-Q1= 24-16=8

%ΔQ=8/16x100=53%



W =.70x 4 =  280    (4)

X =.40x14 = 5.60  (14)

Y =.35x 16 =  5.60  (16)

Z = .15x24 =  3.60  (24)

بدلون دمارکيټنګ په مصارف:




۱- په *1961* کال کې د مصرف کوونکي مقدار د مصارف *(62.2)* بيليون ډالر په غذايي موادو کې د پرچون فروشي په سطحه

۲- په *1960* کال کي مقدار د مصارف د مستهلکينو *(60.2)* بيليون د پرچون فروشي په نرخ

۳- په کال *1959* کي مقدار مصارف د مستهلکينو د پرچون فروشي په نرخ *(58.4)* بيليون ډالر په ايالات متحده امريکا کي ښودل شوي دي

*1959* کال          *1960* کال *1961* کال

1. Change

Retail value → 3.08% → 3.3% ←

2. change in

Farm value → 3.08% → 3.3% ←

3. change in

Market bill ⟶ 3.08% ⟶ 3.3% ⟵

| كال | Total market bill in billion $ | Farm value in billion $ | Consumer retail value in billion $ | Farmer share in % |
|---|---|---|---|---|
| 1950 | 23.9 | 17.6 | 41.5 | |
| 1951 | 28.3 | 20.0 | 48.3 | |
| 1952 | 29.3 | 19.4 | 48.7 | |
| 1953 | 30.5 | 21.2 | 51.7 | |

# اتم فصل

## دکوپراتیفونودکرنیزو محصولاتو بازاریابي

دکوپراتیف د کرنیزو محصولاتو بازارموندنه د کوپراتیف د انجمن مهم اقتصادي سکتور تشکیلوي ځکه چي د کوپراتیف بازارموندنه د کرنیز محصولاتو لپاره مناسب مارکیټ پیدا کوي او د هغوي کرنیز محصولات په داخلي او خارجي مارکیټونو کي په مناسبه بیه خرڅوي نو پدي اساس د کرنیز د محصولاتو بازار موندنه د کوپراتیف د نورو خدمتونو او فعالیتونو تر څنګ ددغه انجمن عمده او اساسي اهداف تشکیلوي کرنیز کوپراتیفي فعالیتونه زمونږ په هیواد کي د ودي او انکشاف په لور روان دي.په هیواد کي د کوپراتیفونو په را منځته کیدو سره د بیوزلو او نادارو بزګرانو اقتصادي حالت مخ په ښه کیدو دي کوپراتیف وظیفه لري چي د غړي کرنیز محصولاتو لپاره مناسب بازار پیداکړي زراعتي قرضي د ضرورت په وخت کي ورته تهیه کړي او نور مهم خدمات چي دهغوي په کرنیزو فعالیتونو باندي مثبت تاثیر اچوي آماده کړي چي ددغه فعالیتونو او خدمتونو په اساس د کوپراتیف غړي اقتصادي حالت مخ په ښه کیدو وي.

د کوپراتیفونو د تاسیس څخه مخکي بیوزلو او نادارو بزګرانو و نشوکولاي چي زراعتي قرضي ترلاسه کړي او یا خپل محصولات په مارکیټ کي په ښه بیه خرڅ کړي. دوي مجبور وو چي په ډیره لوړه ربح پیسي قرض کړي خپل محصول په کمیشنکارانو باندي په ټیټه بیه خرڅ کړي چي ددوي په اقتصادي حالت باندي منفي تاثیرات رامینځته کړي.

### دکوپراتیف د مارکیټینګ ساحه:

۱- دکوپراتیف دمارکیټینګ ساحه دهغه اقتصادي سیستم څخه عبارت دي چي د کرنیزو محصولاتو تولیدونکي په ډله ایزه توګه خپل محصولات د کوپراتیف له لیاري په داخلي او خارجي بازارونو کي خرڅوي.

۲- دکوپراتیف مارکیټینګ وظیفه لري چي د خپل غړي محصولات په داوطلبانه او رضاکارانه توګه خپل محصولات د کوپراتیف چینل څخه د ښه ګټي د ترلاسه کولو په خاطر داخلي او خارجي بازارونو ته واستوي.

۳- کوپراتیف مارکیټینګ وظیفه لري چي دخپل غړي محصول د خرڅلاو په خاطر د کمیشنکارانو د مداخلي څخه پرته په جګ نرخ مارکیټ کي خرڅ کړي.

۴- کوپراتیف مارکیټینګ وظیفه لري چي دخپل غړي سره د کښت د مرحلي څخه تر خرڅلاو مرحلي پوري هر راز تخنیکي او اقتصادي مرستي وکړي تر څو د غړي اقتصادي حالت ښه شي.

### د کوپراتیف د ماکیټینګ هدفونه:

۱- دکوپراتیف د غړي تقویه او حمایه کول د خارجي معاملاتو او قراردادونو په وړاندي.

۲- دکوپراتیف دغړي اطمینان حاصلول پدي چي دهغوي حاصلات په لوړه بیه خرڅیږي.

۳- دکمیشنکارانو او جلابانو د فعالیتونو څخه مخنوي په کوپراتیفي چارو کي.

۴- دکوپراتیف دغړي تشویقول چي ښه جنس او با کیفیته محصول مارکیټ ته عرضه کړي.

۵- دکوپراتیفونو تجارتي اړیکي دنورو هیوادونو او تجارتي موسساتو سره.

۶- دنرخونودثباتاواستقرارپهخاطرهلي ځلي.

۷- زراعتي قرضي د تهیه کولوپه خاطر کوښښ د بي وزلو بزګرانولپاره.

۸- دکوپراتیف د غړي د ښه حاصلاتو د کمیت او کیفیت له نظره دداخلي او خارجي مارکیټونو د تقاضا په خاطر تهیه کول.

**کوپراتیف مارکیټنګ ته ضرورت**:

کوپراتیف مارکیټنګ لاندي امتیازات او ګټي لري:

۱- دکوپراتیف دغړي دحاصلاتو بازارموندنه دانفرادي تاجرانواو انفرادي اشخاصو په نسبت ډیراقتصادي دي او د اضافي مصارفو څخه مخنیوي کوي.

۲- په کوپراتیفي شکل زیات عاید دخرڅلاڅخه لاس ته راځي.

۳- په کوپراتیفي سیستم کي د نرخونودنوساناتوپه مقابل کي مقاومت کولاي شي.

۴- کوپراتیفي نظام کریدتي سهولتونه د غړي لپاره آماده کول.

۵- دغړي محصولات په ښه نرخ د مارکیټ دتقاضاسره سم عرضه کیږي.

۶- دغړي اضافي تولید چي د خرڅلاولپاره برابرشوي وي په منظمه توګه صورت نیسي.

۷- دجلابانو، کمیشن کارانود فعالیتونو څخه مخنیوي کیږي.

۸- دبازارموندني په جریان کي غړي ګټوره تجربي ترلاسه کوي.

۹- دغړي په تعلیم او تربیه کي مهم رول لوبي.

## هغه عوامل چي دکوپراتیف مارکیټنګ د تاسیس سبب کیږي

هغه کسان چي د بزګرانودګټي سره علاقه مندي لري باید یو سالم اداره د بازارموندني لپاره تاسیس کړي چي بزګران خپل مازاد حاصل په دغه چینل کي خرڅ کړي او ښه عایدات ترلاسه کړي.

اودغه اداره لاندي ګټي لري:

۱- دمغرضینو کسانو د لاس وهني څخه مخنیوي کوي.

۲- دمولدینو اودمستهلکینودګټي د پراګندګي څخه مخنیوي کوي.

۳- ددولت په انکشافي پروګرامونو کي فعاله ونډه اخيستلي شي.

۴- دنرخونوپه ثبات کي موثرواقع کيږي.

۵- دخوراکي شيانودکموالي څخه په مارکيټ کي مخنيوي کوي.

۶- دتوليد د پراخوالي زمينه آماده کيږي.

۷- معقول رقابتونه چي د اقتصاد د تقويي سبب کيږي حمايه کوي.

**کامياب کوپراتيف مارکيټنګ لاندي ټکي ته ضرورت لري**:

۱- مشخص او معين هدفونه تعين د علمي پلان ګزاري په اساس.

۲- واقعي ضرورتونه په نښه کول.

۳- دغړي مازاد بايد دکوپراتيف د چينل څخه مارکيټ ته عرضه شي.

۴- دګودامونواوسړوخونو موجوديت په بازار موندنه کي عمده رول لري.

۵- دکريدتي منابعوموجوديت د کوپراتيف اقتصادي فعاليتونو په خاطر.

۶- دمارکيټ د عرضي او تقاضا په اساس منظم پلان جوړول.

۷- ديوسالم او کار فهم اداري ته ضرورت.

۸- دمتخصيصنو او مجربو پوهانو ضرورت

**دکوپراتيف مارکيټنګ عمده فعاليتونه**:

دلګښتونودتقليل په خاطر اود نرخونودثبات په منظور دمولدينو او مستهلکينو دګټي په خاطر لاندي عمليات بايد ترسره شي:

۱- دجلابان او کميشن کاران دسوء استقاوي څخه مخنيوي.

۲- دجنسپلورلاوٌاخيستل دکوپراتيف د چينل څخه.

۳- دغړي لپاره په مناسب ربح قرضي تهيه کول.

۴- دموادواووسايلوعادلانه ويش د کوپراتيف غړي ته.

۵- توليد ، دمارکيټ د تقاضا سره سم.

۶- دمحصول انتقال او ذخيره په معين وخت ګدام او مارکيټ ته.

**لازمه سفارشونه دیو سالم کوپراتیف مارکټنګ لپاره:**

لاندي پيشنهادونو ديو سالم کوپراتيف لپاره ضروري دي:

۱- دکريدتي منابعوموجوديت دکوپراتيف اقتصادي اوتوليدي فعاليتولپاره.

۲- دکوپراتيف مستقيم اړيکي دکريدتي او تمويلي منابعو سره.

۳- دکوپراتيف مستقيم اړيکي تجارتي موسساتو سره په داخل او خارج کي.

۴- دمجربو اشخاصو موجوديت دموثر فعاليتو په خاطر دکوپراتيف په انجمن کي.

۵- دمازادحاصل،دقيق اندازه، اومقدار ترلاسه کول دمارکيټ لپاره.

۶- دکوپراتيف غړي دمارکيټ د اهدافو اووظايفو په مورد معلومات حاصلول.

۷- دپروسسد دستګاهوموجوديت.

۸- دمارکيټ جوړول په مناسب او مختلف ځايونو کي.

۹- دانتقالاتي او ترانسپورتي وسايلو اوګودامونو موجوديت.

۱۰- کافي معلومات د مارکټنګ دتقاضا په اړوند.

۱۱- پلانګزاري د دقيقو معلومات په اساس دتوليدات په مورد د مارکيټ د تقاضا مطابق.

۱۲- ددولتتجارتي پلانونوتطبيق د کوپراتيفونود تقويي په مورد.

۱۳- دسړوخونواوعصري وسايلو موجوديت.

۱۴- دمخابراتي، ترانسپورتي وسايلو موجوديت.

۱۵- دملي اتحاديي موجوديت د بازار موندني په خاطر.

۱۶- دتخنيکي عملياتو تطبيق د حاصلاتو دښه والي په منظور په کمي او کيفي لحاظ.

۱۷- دمحصولاتودرجهبندي، پروسس او بسته بندي.

## نهم فصل

## دکرنیزو محصولاتو دخرڅلاوپروسه

# Selling of Agricultural products

### خرڅلاو:

دا هغه پروسه ده چې د پیسو په بدل کې د شیانو ملکیت له اخیستونکي څخه خرڅونکي ته انتقالیږي .هغه څوک چې د خرڅلاو دنده په مخ وړي د خرڅونکي یا(Sales Man) په نوم یادیږي. او هغه توکي چې د خرڅلاو په پروسه کې تبادله کیږي د Sales په نوم یادیږي .

### خرڅلاو هم ساینس دي او هم فن:

خرڅلاو دواړه هم ساینس او هم فن دي ، خرڅلا و فن دی ځکه چې د خرڅلاو ډیر مهارتونه له کوم ځانګړي کتاب څخه نه زده کیږي.

د یو کتاب لوستل له خرڅلاو سره مرسته کوي خو داد غوره خرڅلاو لپاره کافي وسیله نه دي.ډیر مهارتونه لکه د اخیستونکي د غیرلفظي مفاهمي پیغامونه ،غوړ نیول ، نیوکي کنترولول او داسي نور اړین مهارتونه دي ، دغه مهارتونه د تجربي په وسیله ترلاسه کیږي. خرڅلاو ساینس ده ځکه د پوهي یوه برخه او محصوص واقعیتونه د ي چې خرڅلاو تشریح کوي. یو کامیاب خرڅونکی باید دخاصو زده کړو او تجاربو څخه برخه من وي .



**دخرڅلاو مهارتونه:**

خرڅونکی دمختلفو وظیفو د سرته رسولو مسولیت لري کوم چې مختلف مهارتونه غواړي . که څه هم دا مهارتونه ډیر زیات دي خو دري مهمي کټګوري یی په لاندي ډول دي .

**۱_ مفهومي مهارتونه:**

دا د خرڅونکي یوه تدراکي ورتیاده ترڅو د خرڅلاو ټوله پروسه او د برخو ترمنځ یی اړیکي وکتل شي .

مفهومي مهارتونه د خرڅونکي د فکر کولو او پلان نیولو قابلیتونه دي او دابښئي چې یو تولید چیرته د مشتریانو د کاراوبار لپاره سمون خوري .دا مهارتونه خرڅونکي ته ددي توانائي ورکوي ترڅو د تولید ، اخیستونکي او اخیستونکي اداري په هکله په ستراتیزیک ډول فکر وکړي .

**۲- انساني مهارتونه:**

دا دخرڅونکي ورتیا ده چې له نورو خلکو سره کار وکړي او په نورو خلکوکي کار وکړي .

ددي مهارتونو ښتن خرڅونکی نور خلک خوښوي ، او دی هم نورو خلکو ته منلی وي .هغه کسان چې دغه مهارتونه نلري اکثراً تند ،تریخ ، قاطع او نازړه سوانده کسان وي

ددوي دغه ډول خیره او کبرجنه ځیره کله هم د نورو ضرورتونه نشي په ګوته کولای .

**۳-تخنیکي مهارتونه:**

په ځانګړو وظیفو کې خاصه پوهه لرل عبارت له تخنیکي مهارتونو څخه دي . تخنیکي مهارتونه د هغو میتودونو ، تکتیکونو او وسایلو په هکله امادګي ده چې د کرنیزو محصولاتو په خرڅلاو کې په کاریږي .

تخنیکي مهارتونه خاصه پوهه ، د تحلیل ورتیا او د وسایلواو تخنیکونو غوره استعمال ده چې د یو خاص ډیسپلین او نظم له مخي د مشکلاتو په حل کې برخه اخلي .

**د کرنیزو محصولاتو د خرڅلاو طریقي:**

په عام ډول باند د خرڅلاو مختلفي طریقي شته د ي خو ددوی هریوه د لاندي دریو میتودونو څخه د یوه په اساس وي .

۱- پلټنه Inspection ۲- نمونه ګیري ۳Sample- تشریحي طریقه

Description

### د پلټني طريقه:

په دي طريقه کې د خرڅلاو توکي د حقيقي اخيستونکي په وسيله مخکي له اخيستلو څخه پلټل کيږي . دا داخيستلو يوه زړه او ساده طريقه ده ، چې د اخيستونکي ، خرڅونکي او توليد له ځاي کولو څخه وروسته يی پلټنه ، قيمت ايښودنه او ځيني نور ضروري شرطونه د توافق تر حده رسيږي .



### د نمونه ګيري په طريقه خرڅلاو:

په بعضي وختونو کې د اخيستونکي لپاره د ټولو اجناسو د پلټني طريقه مناسبه نه وي ، نو په داسي حالاتو کې د پلټني يو بل بديل شکل چې د محصولاتو د يوي برخي کتل دي صورت نيسي .دا طريقه اکثره د هغو توليداتو لپاره استعماليږي چې په ټولو برخو کې يی عين خصوصيات صدق وکړي لکه غلي داني ، پنبه ، شيدي او نور . هغه توليدات چې له دي طريقي خرڅلاو ته وړاند ي کيږي بايد په معياري شکل سره يي درجه بندي شوې وي .

### تشريحي طريقه:

دا د خرڅلاو دريمه طريقه ده . نسبت نورو طريقو ته پرمختللي ده چې دمعيار يوه تشريحي ژبه پکې استعمال شوي چې هغه نښي او سمبولونه دي او د مختلفو کيفيتونو موجوديت ښئ . په د ي طريقه ګڼ شمير کرنيز او کم شمير صنعتي توليدات خرڅيږي .

### د خرڅلاو ډولونه:

په عمومي ډول خرڅلا و په مختلفو طريقو کيږي چې ځيني يي په لاندي ډول دي

۱- F O B طریقه:

F O B چې د (Free on board)محفف د ي او دا د خرڅلاو هغه ډول دي په کوم کې چې اجناسو ته بیه مارکیټ ته له لیږد څخه مخکې ټاکل کیږي.

بیا یې تر مارکیټ پورې مصارف د اخیستونکي په غاړه وي همدارنګه دانتقال په وخت کې پیښیدونکي خطرات هم د مشتري په غاړه دي .

۲-Delivered sale طریقه:

دا دخرڅلاو هغه ډول دي په کوم کې چې د تولید ملکیت په مارکیټ کې اخیستونکي ته انتقالیږي د انتقال ټول مصارف یې د خرڅونکي په غاړه وي او د انتقال په وخت په وخت کې ټول پیښیدونکي خطرونه او ضایعات د خرڅونکي په غاړه وي . د خرڅلاو قیمت له انتقال څخه مخکې او یا د انتقال په وخت کې ورته ایښودل کیږي د نرخ د تغیر په هکله خطرونه د انتقال له وخت څخه مارکیټ ته تر رارسیدلو پورې د اخیستونکي په غاړه وي .

۳- Price arrival saleطریقه:

په د ي ډول خرڅلاو کې اخیستونکي له خرڅونکي څخه د مال غوښتنه کوي په داسې ډول چې د مال قیمت به مارکیټ ته په رارسیدلو سره ټاکل کیږي .

اجناس به د خرڅونکي په ذریعه مارکیټ ته انتقالیږي د لاري کرایه او نور خدمات خرڅونکي کوي او نور خطرونه هم د خرڅونکي په غاړه وي

کله چې مال مارکیټ ته راورسیږي د اخیستونکي له خوا یې پلټنه کیږي او بیا کوښښ کوي چې په یو قیمت باندې دواړه سره قانع شي .

۴- Track sale طریقه:

دا هم د Price arrival په ډول دي خو فرق یې په دي کې دي چې خرڅونکي مارکیټ ته د تولیداتو د انتقال په وخت کې کوم مشخص اخیستو نکي په نظر کې نه لري. او نه له چا سره د اجناسو په درجه بندي ، اندازه ،د اجناسو د رسولو وخت او نورو خواصو خبري شوي وي . د خرڅلاو په دي ډول کې اخیستونکي جناس ګوري او له خوښولو وروسته یې د بیې خبره خلاصه وي . په دي ډول کې مارکیټ ته د انتقال کرایه او نور احتمالي خطرونه د خرڅونکي په غاړه وي.

۵- Consignment sale **طريقه**:

په کرنيزو محصولاتو کې دغه طريقه هم عامه د ه په دي ډول کې اجناس تر هغه د خرڅونکي په غاړه وي تر څو په ورستني مارکيټ کې د کميشن کار په ذريعه خرڅ شي

د خرڅولو په دي ډول کې تر هرڅه د محه ليږدونکي هغه مارکيټ انتخابوي چې د ي ورته مال ليږدول غواړي . له ليږلو وروسته کميشن کار يې په مارکيټ کې دده پنوم ترلاسه کوي . اصلاً د مارکيټ په انتخاب کې تر ټولو غټ عامل چې دغه انتخاب متاثره کوي کميشن کار دي . کله چې دغه مال مارکيټ ته راورسيږي.

## مشتري څوک دي؟

- خرڅونکي ته ښئي چې خپل مشتريانو ته د خوشبيني له مخې وګوري . لاندېني څو جملې د يو مشتري موقف څرګندوي .
- مشتريان په يو کار او بار کې تر ټولو مهم خلک دي.
- مشتريان هغه څوک نه دي چې هغوي له مونږ پوري تعلق لري ، بلکه مونږ يو چې د دوي پوري تعلق لرو .
- مشتريان يوه ډله خلک دي چې په مونږ لورينه کوي . او مونږ يو چې د دوي لورينې ته انتظار باسو.
- مشتريان زمونږ د کار او بار يوه برخه ده دوي يوازي د پيسو منبع نه دي بلکه دا د بشريت برخه ده کوم چې د حس توانايي لري او په قدر او عزت کولو ارزي .
- مشتريان هغه خلک د ي چې مونږ ته ضروريات او غوښتني راوړي او زمونږ مسئوليت ده چې ددوي ضروريات او غوښتني پوره کړو .
- مشتريان د هر کار او بار د وجود وينه ده .
- مشتريان مونږ د کاردوام دي او بغير له مشتريانو مونږ بايد خپل کار او بار وتړو .

## ګډ مارکيټ(Marketing mix):

دا دکنترول وړ هغه تدابيرو او وسايلو مجموعه ده چې د هغوي له مناسب استعمال په واسطه د خرڅلاو مطلوبه نتيجه تر لاسه کيږي. ددوي استعمال د سوداګريزو توکو استعمال متاثيره کوي . ګډ مارکيټ په لنډ ډول له 4ps څخه عبارت دي.

۱_ محصولات product

۲_ بيه price

۳_ ځاي place

۴_ د توليداتو پيشرفت promotion

**توليدات**:

په دي برخه کې د توليداتو په هکله پلان او ډيزاينول راځي . لکه د توليداتو د انواعو څخه د يوي مناسبي نوعي ټاکل او د هغه د نورو مشخصاتو په هکله پريکړه کول دي د پريکړي په دي برخه کې اکثره د بازارموندني پلټني کارول کيږي خرڅونکي اول د خپلو مشتريانو اړتياوي مشخصوي ، بيا د نوموړو اړتياو د پوره کولو لپاره مناسب جنس توليدوي.

**قيمت ايښودنه**:

مشتري چې کوم شي واخلي او د هغي په بدل کې پيسي ورکړي دغو پيسو ته د نوموړي شي قيمت يا بيه ويل کيږي . ټول هغه کسان چې په کرنيزه بازارموندنه کې کار کوي بايد په بيعو او ګټو باندي پوه وي . هغه دهقانان چې ګټه کوي چې نوي فصلونه توليد کړ ي بايد خبر اوسي چې د توليد احتمالي مصارف څومره دي اوددي توليد لپاره د بازارموندني مصارف څومره دي

**ځاى يا محل**:

په دي برخه کې د توليداتو د توزيع لپاره مختلفي لاري چاري تر بحث لاندي نيول کيږي ځاى د مولد له هغو فعاليتونو څخه عبارت د ه چيرته چې شيان مشتري ته سپاري.

د شيانو ترقي :هغو ټولو فعاليتونو چې مشتريانو ته د مال اوصاف اوغوره والى بيان شي او مشتري د هغي اخيستلوته وهڅول شي . توليداتو ته بايد په بازار کې پراختيا ورکړل شي، په دي کې د خرڅلاو وده ، د توليداتو په هکله مشتريانو ته اطلاع ورکول او د کيفيت ښه والي شامل دي.

**قيمت ايښودنه**:دا دمولد له خوا د پيسو په شکل يو توليدي توکي ته سنجول شوي ارزښت ده چې اخيستونکي ديته رابولي چې نوموړي توليد د پيسو په ټاکلي شوي قيمت سره تر لاسه کړي . له توليد نه وروسته او مخکي له دي چي جنس بازار ته عرضه شي د خرڅونکي بايد خپل توليد ته مناسب قيمت کيږدي .کله چې يو نوي جنس بازارته وړاندي کيږي خرڅونکي بايد ځان مطمن کړي چې ايښودل شوي قيمت له يو بل مشابه توليد سره په پرتليز ډول مناسب ده او که څنګه.

قيمت ايښودنه يا د توليد بيه په لاندي دوو عواملو پوري اړه لري .

**داخلي عوامل** :د يو خاص توليد د توليدولو مصرف څومره ده او دڅومره ګټي توقع کيږي .

**خارجي عوامل**:د مارکيټ طبيعت او توليد لپاره غوښتنه ، سيالي او رقابت ، هغه بيه چې مشتريان يې په ورکړه اماده وي ، تحفيف او نور محيطي عوامل .

**د قیمت ایښودني طریقه:**

**۱_ د مصارفو په اساس قیمت ایښودنه:**

دا د قیمت ایښودني ساده شکل ده چې مصارف او د توقع وړ ګټه له مجموعي څخه د مورد نظر تولید بیه په لاس راځي.د نوموړي اساس فورمولیک شکل په

لاند ي ډ ول دي .          قیمت = مصارف + ګټه

**۲_ د تقاضا یا ارزښت په اساس قیمت ایښونه:**

په دي اساس قیمت ایښودنه د هغه ارزښت څخه عبارت ده کوم چې د اخیستونکي لخوا یوتولید ته ورکول کیږي ، نه داچې د خرڅونکي مصارف په نظر کې ونیول شي . د قیمت ایښودني دا ډول داسي نه ده چې خرڅونکېي یو تولید ته طرحه او ډیزاین جوړکړي او بیا ورته په خپله خوښه یوه بیه انتحاب کړي ، بلکه دا ډول قیمت د تولید ضمني ارزښت ده چې د خرڅونکي لخوا نه بلکه له بیرون څخه ټاکل کیږي .

**۳_ د رقابت په اساس قیمت ایښودنه:**

د رقابت په اساس د قیمت ایښودني یو مغلق شکل لري . هغه وخت چې په مارکیټ کې یو یا څو رقابت کوونکي موجود وي نو تولید ته قیمت په داسي ډول ایښودل کیږي چې د بل رقابت کوونکي نرخ هم په نظر کې نیول کیږي . دغه نرخ کیدای شي له هغه سره برابر یاکم اویا لږ څه زیات وي .

**د خرڅلاو طریقه، تخنیک:**

په خرڅلاو کې د پرمختیاوو زیاتوالي د راستولو لپاره ډېر چلونه او تخنیکونه کارول کېږي. د زیاتوالي پلان جوړونکي ته پکار ده چې د مارکیټ اقسام په خرڅلاو کې د اضافه کولو هدف، مقابله لګښت او د هر چل او تخنیک اغیزمنتوب تر غور او څېړنې لاندې ونیسي. د مستهلکینو او سوداګرو د تسلي او حوصلې لپاره چې کوم تخنیک په کار اچول کېږي تفصیل یې په لاندې ډول ده:

**د مستهلکینو حوصله او همت لوړول:**

په مستهلکینو باندې د اغیزه کولو لپاره چې کوم چل او تخنیک په کار اچول کېږي په هغې لاندې عوامل شامل دي:

- ❖ نمونې
- ❖ کوپون
- ❖ پریمیم
- ❖ پیسو راستنول

**۱- نمونې**:

نمونې یوه داسې ډالۍ ده چې په ازمایښتي ډول د شیانو د وړاندی کولو استازیتوب کوي. ځینې نمونې یا سیمپلونه په وړیا توګه او ځینې په کمه بیې سره ویشل کېږي. د سیمپل په ډول شیان کله په جلا ډول ویشل کېږي او کله د نورو شیانو سره یوځای ویشل کېږي. د نمونې ویشل د نویو محصولاتو د تشهیر یوه اغیزمنه او ډېر لګښته ذریعه ده.

**۲- کوپون**:

کوپون داسې یو سند ته ویل کېږي چې د ځانګړو شیانو په خریداري کولو سره د سپما باعث ګرځي. کوپون هم شیانو کې د خرڅلاو موجب کېږي .

**۳- پریمیم**:

پریمیم داسې شیانو ته ویل کېږي چې د هغې ډالۍ کول په وړیا توګه او یا په کمې بیې سره د یو محرک په توګه د شیانو د اخستلو په توګه کارول کېږي، پریمیم په پیکینګ کې دننه او له هغه څخه بهر هم کېدای شي، کله کله که پیکینګ د دوباره استعمال وړ وي نو هغه هم د پریمیم په توګه کارولو لپاره په کاریږي.

**۵- د پیسو ستنول یا واپس کول**:

د پیسو ستنول د کوپون په شان دي توپیر یې یواځې دومره دی چې په بیه کې کمښت کول د خریدارۍ په مهال نه بلکېد خریدارۍ کولو نه وروسته صورت نیسي.

**٦- انعام**:

د مخصوصو شیانو په خریدارۍ باندې ځینې کاروباري اداري کمپاینې انعام مقرروي، چې په دې ترتیب سره زیات شمېر خلک د انعام حاصلولو لپاره هم د شیانو په اخستلو کې دلچسپي ښایي.

**۷- مقابله او سیالي**:

یو شمېر کمپنۍ او کاروباري اداري لوی رقابتونه په لاره اچوي او دا د انعام په ډول د خلکو د هڅولو په موخه شیان ویشي. په دې طریقه سره هم په مستهلکینو کې د محصولاتو د اخستلو ولوله پیداکېږي.

**۸- د تشهیر لپاره د ځانګړو شیانو برابرول او ویشل**:

ځینې تولیدي اداري د لوبو رقابت په لاره اچوي او د انعام په ډول په لوبغاړو او نورو خلکو شیان ویشي او یا داسې نور کاري شیان د نورو شیانو د خریدارۍ لپاره ورته ضرورت پېښېږي مستهلکینو ته ورکوي. دا کار په خلکو کې د شیانو د اخستلو مینه او جذبه پیداکوي.

### ۹-د سوداګرو واړه کول:

د تولیدوونکي لخوا عمده فروش او پرچون فروش دې ته هڅول کېږي چې هغوی د ده جوړ کړي محصولات د پلورلو لپاره یوسي. د دې هدف په پام کې نیولو سره تولیدوونکی هغوی ته ډېرې اسانتیاوې برابروي. لکه تشهیر، تر لګښت کوونکي پورې د شیانو د رسولو انتظام، په بیه کې رعایت او د شیانو د واپس کولو تضمین، پرچون پلورونکو او عمده پلورونکو ته وړیا شیانو برابرول، د تولیدوونکي تجارت ته د ودې ورکولو ترڅنګ مستهلکینو ته اسانتیاوې هم برابروي.

### د پلورلو د پراختیا هدف:

د محصولاتو په خرڅلاو کې د پراختیا لپاره چې کوم تخنیک او طریقې کارول کېږي د هدف په لحاظ سره مختلفې وي. مثلاً مستهلکینو ته د ازمایښت په توګه وړیا سمپل ورکول، هغوی خریداري ته هڅوي له بلې خوا د اداري مشورتي خدماتو په واسطه د پیداکوونکي او پرچون فروش ترمنځ ښې اړیکې ټینګیږي.

پلورونکی په خرڅلاو کې د پراختیا له مخې نوي خریداران متوجه کوي. کله کله خریداران د دوهم ځل خریداري کولو لپاره هم هڅول کېږي.

#### نوي خریداران په درې ډوله دي:

۱- هغوی چې شیانو یې نه وي استعمال کړي.

۲- د نورو نمونو دایمي خریداران.

۳- داسې خریداران چې شیان تبدیلوي.

د خرڅلاو عمله د دریمې درجې والاد خریدارانو د متوجه کولو لپاره د محصولاتو بیې کمې ټاکي او ورته د ښه کیفیت شیان برابروي او په دې ترتیب د هغوی څخه دایمي خریداران جوړیږي، خو د لومړي او دوهم نمبر خریداران په اسانۍ سره په شیانو خریداري کولو ته نه چمتو کېږي.

### د سوداپلورنې مهارت:

په ګډه پرمختیا کې د پلورلو په کار کې مهارت لرل دوهم مهم عنصر دی، د خرڅلاو کارکوونکي مستقیم ارتباط ټینګوي، چې د هغوی په واسطه احتمالي مشتریان د شیانو خریداري ته چمتو کېږي . د خرڅلاو له دندې څخه هدف خریداري ته د خلکو هڅول او تشویق کول دي.

د خرڅلاو د کارکوونکي دنده دا نه ده چې خلک په خریداري کولو مجبور کړي بلکې دا یو داسې عمل دی چې ترمخه یې د خلکو خبرول، هڅول او د خریدارۍ لپاره خلک تر تاثیر لاندې راوستل دي.

- د خرڅلاو اداره نیغ په نیغه د پلورونکي او متوقع خریدار ترمنځ د قانع کولو طریقه ده.

- د شخصي طريقو څخه موخه دا ده چې په هغه کې اشخاص ونډه اخلي او غير شخصي دا چې پرته له اشخاصو عملي شي.

### د مؤثر پلورلو شرایط:

خرڅلاو د پلورونکو افرادو په وسیله ترسره کېږي. د خرڅلاوکامیابي د پلورونکي په فعالیت پوری اړه لري. پلورونکی ټولو هغو پروګرامونو ته د عمل جامه وراغوندي چې د خرڅلاو اداری په لاره اچولي دي. په کاروبار کې پلورونکی یواځینی شخص دی له مشتریانو سره تماس نیسي. پلورونکی په خپلو اخلاقو، چلند، فعالیت او د معاملاتو په کولو سره د خپلې کمپنۍ استازیتوب کوي. یو پلورونکی باید لاندی ځانګړتیاوې ولري:

**۱- شخصي پوهه**:د پلورونکي شخصیت باید لوړ او زړه راښکونکی وي، هغه ته د خپل شخصیت پیاوړي او کمزوري اړخونه باید معلوم وي په هغه کې چې کوم ښه صفتونه موجود وي باید په سمه طریقه کار ترې واخلي. د خپلې دندې غوښتنې باید په نظر کې ولري د وچ او سخت طبعیت پلورونکی مشتریان نه خوښوي. د مشتریانو د ملاتړ او حمایت حاصلولو لپاره باید د ښې قواری، ښو اخلاقو، ښه چلند او ښې وینا مالک باید د پلورونې لپاره وټاکل شي.

**۲- په شیانو پوهه لرل**: د پلورونکي د کامیابۍ لپاره دا شرط ده چې د هغو شیانو بیې، کیفیت، ځانګړتیاوو او د هغه د استعمال په اړه پوهه او علم ولري چې دی یې کاراوبار کوي.

**۳- د کاروبار په اړه علم**:پلورونکي ته ښایي لاندی معلومات ارو مرو ولري:

الف- دا کاروبار یې کله پیل کړی.

ب- د کاروبار په بریالیتوب کې کوم کسان مسؤلیت په غاړه لري.

د محصولاتو تولیدونکي څه ډول کسان دي.

**٤- د مشتریانو په باره کې پوهه**:ترڅو پوری چې پلورونکی د مشتریانو په اړه پوره علم ونه لري نوری هر ډول ځانګړتیاوې پلورونکی د کامیابۍ معراج ته نه شي رسولای.

د مشتریانو په باره کې علم لرلو څخه هدف دا دی چې د خریدار محرکات څه دي یعنی هغه عوامل چې مشتري د شیانو اخستلو ته چمتو کوي. همدارنګه د مشتري نور خصوصیات لکه اقتصادي وضعه او نور کورني حالات.

### ۵- د خرڅلاو د طریقې په اړه علم:

د پورتنیو معلوماتو برسبره د پلورونکي لپاره لاندی معلومات هم لازم دي.

- د شیانو د پلورلو اصول کوم دي.
- د خلکو سره د شیانو په انتخابولو کې څه ډول مرسته باید وشي.

- د هغوی د مسایلو په اړه تجاویز کوم دي.
- د غوره سلوک ښرګندونه.
- د خریدار قانع کول.

که چېرې پلورونکی په دی عواملو باندی پوهه ولري نو کولای شي دایمي او مستقل مشتریان پیدا کړي.

## د پلورونکي شخصي اوصاف:

پلورونکی باید لاندی اوصاف ولري:

**زړورتوب**:یو غوره پلورونکي ته لاژم دي چې زړور وي. په دی سره په مشتریانو باندی اثر پریوځي، بدني او عصبي ځواک د یو پلورونکي څخه جرات مند شخص جوړوي.

**دیانتداري**: پلورونکی باید انتهایي درجه دیانتدار وي، چې مشتري د پلورونکي د دیانتدارۍ په وجه په هغه باور کوي ځکه نو هغه ته پکار ده چې هیڅکله په شیانو کې بل کوم شی ګډ نه کړي او غلطه خبره یی د خولی ونه وځي.

**زیارکښ**: پلورونکي ته لاژم ده چې زیارکښ وي. د زیار او زحمت روحیه په کې وي تر ډېره او پرله پسی توګه د کارکولو ځواک ولري، متوازن او یخ مزاجه وي هغه ته ورسپارل شوی دنده په خپل وخت سره سرته ورسوي.

**د اصولو خاوند وي**:یو ښه پلورونکي ته ښایي چې په اصولو سودا کوونه وکړي. کله کله مستهلکین هم د کاروبار د شهرت له مخې سودا کوي.

**زړه راښکونکی شخصیت**:یو پلورونکی باید د اعتماد وړ او زړه راښکونکي شخصیت مالک وي، ترڅو له کومه وخته چې د مشتریانو سره د هغه ارتباط ټینګیږي نو چې شخصیت یې په هغوی اغیزه ولري.

**ښه لباس**:دا ضرور ده چې پلورونکی خوش لباسه او د ښه ذوق خاوند وي، چې ښه لباس او اعلی ذوق د هغه شخصیت دوچنده کوي.

**د ښې وینا خاوند**:پلورونکی باید د ښې وینا او غوره ژبی خاوند وي ترڅو په خپلو ښو او غوره خبرو خریداران د شیانو اخستلو ته چمتو کړي.

**د اخلاقو خاوند**:بااخلاقه پلورونکی په خپلو ښو اخلاقو سره د مشتریانو زړه لاسته راوړي، حالات چې هر ډول وي خو پلورونکی باید د اخلاقو لمن خوشی نه کړي.

**روغتیا او جسامت**:د ښې روغتیا او جسامت خاوند پلورونکی هر ډول ستونزمن کار په اسانۍ ترسره کوي. داسې کاروبار چې دروند وي د هغې لپاره د روغ جسم پلورونکي د خدماتو حاصلولو اړتیا ده.

**ذهن**:د یو ښه پلورونکي لپاره لاژمه ده چې ذهین وي، ترڅو ډېر زر او په اسانۍ سره د مستهلکینو په ذوق وپوهیږي او د پلورلو په وړاندې موجود خنډونه لرې کړي. او د مستهلکینو د مطمئن کولو لپاره هڅه وکړي.

**اطمینان**:لاژمه ده چې پلورونکی د خپل کار څخه مطمئن وي چې په دې صورت کې هغه هم خپل کار په زیار، دلچسپۍ او خوښۍ سره کوي.

**مشاهده**:پلورونکی باید د مستهلکینو او چاپیریال د مشاهده کولو عادت ولري، په دې سره هغه ته د خلکو ذوق خوښي او ناخوښي د خریدارۍ د عادت او نورو خصوصیاتو په اړه اندازه لګیږي او د خپلو مشاهداتو او تجربې په رڼا کې هغه مشتریانو ته ښه خدمت کولی شي.

**پراخه معلومات**:پلورونکی چې د کومو شیانو د کاروبار سره تړاو لري د هغی په اړه ورته په درستو معلوماتو پوهیدل ځکه لاژم دي چې ترڅو مشتریانو ته ټول معلومات برابر کړای شي او په هغی باندی د خپلی خبری د منلو لپاره ورته مضبوط دلایل وړاندې کړي.

**فرصت پېژندونکی**:ښه پلورونکی هغه شخص دی چې د خلکو په روحیاتو پوهیږي، هغه ته پکار دي چې د مشتریانو د طبعیت سره سمی خبری وکړي ځکه د هر سړي طبیعت د بل سړي له طبیعت سره مختلف وي. د موقع پېژندل د ډېرو مسایلو څخه د نجات باعث کېږي.

**د شیانو د پلورلو هنر**:پلورونکی باید د شیانو د خرڅولو هنر ولري. د هرې موقع او عمل په مناسبت سره خبری وکړي ترڅو مشتریان د شیانو په اخیستنې باندی قانع کاندي.

**حوصله او زغم**:د اختلاف په صورت کې پلورونکی باید د صبر او زغم څخه کار واخلي او د نیوکې په وخت کې له حوصلې او برداشت څخه کار واخلي او د مستهلکینو د قانع کولو کوښښ وکړي، خود غرضه نه وي بلکې د نورو لپاره د قربانۍ ورکولو جذبه ولري.

**د تدبیر خاوند وي**:پلورونکی باید د ښه طریقه د معاملاتو د ترسره کولو ځواک ولري او د مشتریانو د ډاډمن کولو لپاره بیلابیلې طریقې استعمال کړي او د دې ترڅنګ د کاروبار د هدفونو په پام کې نیولو سره د مستهلکینو د خوښ ساتلو تدبیر هم ورسره وي.

**د کرنیزو محصولاتو د خرڅلاو دوه ستري کړی**:

عمده پلورونکي

پرچون پلورونکي

### ۱-عمده پلورونکي:

دا د پلورونکو هغه ډول چې تولیدات په پرچون فروشانو یا عمومي مشتریانو باندی پلوري، اودوی دا مناسبه ګڼي چې تولیدات په ډیره پیمانه وپلوري د دی پرځای چې هر مستهلک سره جلا جلا رابطه ټینګه کړي یا په بل عبارت عمده فروشي په داسی فعالیتونو باندی مشتمله ده چې ترمخه یې د مختلفو مراجعو څخه په ډېره اندازه مال واخستل شي او د کاروباري موخو لپاره د پرچون فروشانو لپاره برابر او په هغوی یې وپلوري. کله کله عمده فروشان مال اخلي او ذخیره کوي یې ترڅو په مارکیټ کې تقاضا او عرضه کولو ترمنځ توازن رامنځته شي.

### عمده فروش پلورونکي په دوه ډوله دي

### الف- بهرني پلورونکي:

دا ډول پلورونکي مارکیټ ته ځي، له پرچون فروشانو او مصرف کوونکو څخه فرمایش ترلاسه کوي. دا پلورونکي د فرمایش د حاصلولو لپاره نور کسان نه واسطه کوي بلکې پخپله د ښو اخلاقو او د باور وړ دوستانه اړیکو د ټینګولو په ذریعه د مشتریانو اعتماد په ځان پیداکوي او فرمایش ترلاسه کوي.

### ب- داخلي پلورونکي:

داخلي پلورونکي د عمده فروش دوکان نه خوشی کوي بلکې په همدی ځای کې د پرچون فروشانو او مستهلکینو د اړتیا وړ شیان برابروي.

خرڅونکي ولي عمده فروشانو ته ترجیح ورکوي ؟ وجه داده چې دوي په یو یا څو لاندې ینیو وظایفو په اجرا کې نسبت نورو ته غوره دي

## لسم فصل

## دمارکیټنګ ماحول (محیط) او طبقه بندي

## Marketing environment and Segmentation

### Aدمارکیټ محیط یا ماحول(Marketing Environment):

### مارکیټ(Market):

دهغه ځاي ځخه عبارت ده چي هلته اخستونکي اوخرڅونکي سره یوځاي کیږي اودارزښتونوتبادله (Value exchange)ترسره کوي یا خلص داچي دجنس خرڅول یا اخستل هلته ترسره کیږئ .



### دمارکیټنګ محیط(Marketing Environment):

- دمارکیټنګ محیط دهغو قواوو، فشارونو(Forces) سره رابطهٔ لري چي دکمپني سره نژدي وي اودکمپني دمولدینوتوانائي باندي چي خپل مشتریانوته خدمت رسوي اغیزه کوي
- دمارکیټنګ میحط د دوومحیطونوڅخه جوړ شوي

A- مایکرومحیط ( Micro- environment )

B- مکرومحیط ( Macro- environment

## The Marketing Environment




### مايکرومحيط(Micro-environment):

- داهغه فشارونه يا (Forces) ته مربوطيږي چې کمپني ته نژدې واقع وي اودکمپني توانائي متاثره کوي ترڅوچې خپل مشتريانوته ښه خدمت ترسره کړي .
- پدې کې لاندې عوامل اوفشارونه شامل دي

۱- کمپني **The company**

۲-دکمپني دخامومواداوعرضه کونکي يعني **Supplier**

۳- دمارکيټنګ منځګړي **Marketing intermediaries**

۴- دمشتريانومارکيټ **Customer Market**

۵- رقابت کوونکي **Competitor**

۶- عامه ، خلک **Public**

## The Microenvironment

هغه فشارونه او قوتونه دي چي کمپني د ښه خدماتو لپاره د مشتري د خوښي په خاطرتقويه او حمايه کوي.




### ۱- کمپني Company:

دداخلي محيط څخه عبارت ده چي ټول ډيپارتمنتونه پکي شامل وي لکه منجمنت ، تمويل ، تحقيق اوپراختيا ، دخريداري ديپارتمنت ،عملياتي اومحاسبوي ديپارتمنتونه اوداسي نور

- دنوموړي ديپارتمنتونوڅخه هريو دمارکيټنګ د تصميم ګيري مرحلي اوعمليو باندي تاثيراچوي

### ۲- دخامومموادوعرضه کونکي Supplier:

هغه خلک دي چي يو کمپني يامولد ته هغه شيان ياخام موادچي دتوليددجوړلويادخدمت سرته رسولولپاره ضروري وي تهيه کوي. يوه توليدي پروسه بغيرداخستلواوخرڅولو څخه نشي کولي يوڅه خرڅ اويا يوڅه وړاندي کړي نوپدي اساس دخامومموادو داخستلوڅخه پرته توليدياخدمت بازارته نشي وړاندي کيدي پدي اساس دخامومموادو عرضه کونکي ډيرمهم اومرکزي رول لري.



## ۳- منځګړي Marketing intermediaries

دهغه خلکوڅخه عبارت دي کوم چي دخامومواد ودعرضه کونکي اوکمپني يا مولد ترمنځ اوهمدارنګه دمولد اومستهلک ترمنځ اړيکي قايموي.




په منځګړي کي لاندي خلک اوسازمانونه شامل دي

**الف- دوباره خرڅونکي** Reseller:

a- عمده فروشان يا wholesaler

b- پرچون فروشان يا Retailer

**ب- فزيکي توزيع کونکي کارخاني physical distribution firms** دکمپني اجناس داصلي ځاي څخه په يوه فاصلي سره انتقاليږي اوبياپه مختلفوشکلونوسره دمستهلکينود استفادي وړګرځي.

**ج- دمارکيټنګ دخدماتونمايندګي Marketing services agencies**

دمارکيتنګ دتحقيقاتوزيادت ، اعلانات ، مشوري ورکول اودمشتريانوجذبول

**د- مالي منځګړي financial intermediaries**

بانکونه ، دقرضي کمپني ، د بيمي کمپني

**دمشتريانومارکيټ Customer market:**

مشتريان هم دمايکرومحيط يو فکتوردي چي دمارکيټنګ محيط ترخپل تاثيرلاندي راوستلي شي چي د لاندي اجزاو څخه تشکيل شويدي.

**الف – دمستهلکينومارکيټ Consumer Market:**

مشتريان دخپلوشخصي مصارفواويادخپل فاميل لپاره مواداخلي اوهغه په مصرف رسوي

**ب- تجارتي مارکيټ Business Market:**

مولدين مواداخلي اوهغه توليدي پروسي کي په پخومواداوتبديلوي اودهغه څخه ورسته يې په مصرف کونکي باندي خرڅوي.

**ج- دولتي مارکيټ Government Market:**

دوي اشيا ددي لپاره اخلي ترڅوعامه خدمات توليداواجناس هغه خلکوته انتقالوي چي ورته ضرورت لري.

**د- بين المللي مارکيټونه International Market:**

پدي کي هغه اخستونکي او پلورونکي يا Buyers شامل دي چي دنړي په سطح فعاليت کوي



### رقابت کوونکي Competitor:

رقابت کوونکي هغه خلک یا کمپني دي چي په یوټاکلي مارکیټ کي دهم نوع تولید اوخدمت په سرته رسولو سره مشتریانوته خدمت کوي ددي لپاره چي یوه کمپني یا مولد خپل دمارکیټنګ محیط ته پراختیا ورکړي اوپه مارکیټ کي دډیروخت لپاره پاتي شي باید پدي پوه وي چي رقیبان یې څوک دي

- که چیري په مارکیټ کي رقیبان موجود وي باید دهغوي وضعه اوحالت مطالعه شي.
- برسیره پدي دخپل دقوت اوضعف ټکي باید معلومي کړي اوهغه کنترول لاندي ونیسي.

### ٦- خلک (عوام)(public):

- داهغه ګروپونو ته شاملیږئ چي دیوه سازمان( Organization) توانائي اوقدرت زیات کړي اویا دهغه په توانائي اوقدرت باندي تاثیرواچوي ترڅوخپل اهداف لاسته راوړي چي دامختلف ډولونه لري

#### الف– financial public:

دادهغه خلکواوګروپوڅخه عبارت دي چي دکمپني توانائي کي زیاتوالي راولي ترڅوپه موثره توګه کمپني لپاره فنډ جوړکړي

#### ب–Media public:

پدي کي اخبارونه اومجلي شاملي دي چي دکمپني دکټي لپاره موثره مقالي (Article) اوسرمقالي نشروي

#### ج– Government public:

داکولي شي د ځیني مقرارت اوقوانینوپه وضعه کولوسره دکمپني په عملیاتواوکارونو باندي محدودیت ولګوي اوهغه ترخپل تاثیرلاندي راولي .

#### د– Internal public:

پدي کي هغه خلک شامل دي چي دکمپني په داخل کي شامل وي اودنوروادارویا خلکوسره معاملات کوي همدارنګه دوي دکمپني دتولید په جوړولوکي هم برخه اخلي.

### B– ماکرومحیط (Macro- Environment):

دهغه فشارونوڅخه عبارت دي چي په لوي اندازه دلید وړتاثیرات دیوکمپني یاتولیدي موسسي په مارکیټي فرصتونواوفعالیتونوباندي اچوي نوپدي اساس دلویومحیطي فشارونوپه نامه هم یادیږي.

مکرومحیط په مایکرومحیط باندي تاثیرکوي اوهغه ترخپل اغیزي لاندي راوړي

پدي كي لاندي فكتورونه شامل دي

۱ - ديموكرافيک(Demographic)

۲ - داقتصادي محيط مطالعه ( Economic environment)

۳ - طبعي محيط (Natural environment)

۴ - تكنالوژي (Technology)

۵ - دسياسي محيط مطالعه (political environment)

۶ - دكلتوري محيط مطالعه (cultural forces)

**The Macro environment**




### ۱ – ديموكرافيك(Demographic):

دنفوسومطالعه دكثافات ، موقيعت ، عمر ، جنس ،نژاد ، شغل اونوروا حصائيوي مشخصاتوپه اساسترسره كيږي دخلكو دګروپونوصنف بندي دهغوي دپيدا ايښت دكلونوپه اساس .

## ۲- داقتصادي محیط مطالعه (Economic environment):

دمکرومحیط بل تاثیراچونکي فکتورده چي پدي کي دمشتریانو(Potential customer) قدرتخریداودهغوي داستعمالولوطریقي شاملي دي. برسیره پدي دیوي منطقي اقتصادي وضعه اواقتصادي انکشاف هم په نظرکي نیول کیږي.

## ۳- طبعي محیط(Natural environment):

دمکرومحیط بل ډیرمهم فکتوردي چي پدي کي طبعي منابع کوم چي دیوي کمپني یامولد دخاموموادو زیرمه اوذخیره تشکیلوي موجودي وي. په نوموړي ساحه کي سروکاردرلودل ددي سبب کیږي چي الودګي ، دخاموموادو کمبود اوپه نتیجه کي د دولتي مداخلاتولپاره زمینه مساعده شي چي ددي مشکلاتودرفع کولولپاره باید دطبعي منابع څخه په اعظمي توګه استفاده وشي همدارنګه هغه کثافات اوبیکاره موادچي دکمپني په شاوخواوکي منځته راځي باید لري اومناسب ځاي ته انتقال شي.



## ٤- تکنالوژي(Technology):

- خپله تکنالوژي دپوهي . روشونو، سامان الاتواوداسي نوروپوځایوالي ته وائي .
- تکنالوژي په مکرومحیط کي یوچټک تغیرمنونکي فکتورګڼل کیږي .
- تکنالوژي مونږ سره دامرسته کوي ترڅوخپل تولیدات په ښه کیفیت سره تهیه اوهمدارنګه په هغه کي نوښتونه اوتغیرات رامنځته کړو.



### ۵- دسياسي محيط مطالعه (political environment):

- سياسي محيط دمارکيټنګ په تصميم ګيري باندي کاملآ اغيزه لري
- ديوه مارکيټ من لپاره دامهمه ده چي دنوموړي قوانين اومحدوديتونوڅخه ځان باخبرکړي ځکه دځينوقوانينوبي خبري ددي باعث ګرځي چي کمپني لوي مشکلات سره مخامخ اوحتي امکان لري کمپني له منځه يوسي
- پدي کي دحکومت وضعه اوحالت مطالعه کيږي برسيره پدي دامطالعه کيږي چي په مربوطه ساحه کي چي دمارکيټ لپاره انتخابيږي امنيتي وضعه څنګه ده، دماليي قانون څنګه ده ، دکوم شي لپاره دتوليد اجازه شته اودکوم شي په توليدکي محدوديت موجود دي .

### ٦- دکلتوري محيط مطالعه (Cultural forces):

- دمکرومحيط اخرني فکتوردا جتماعي اوکلتوري محيط مطالعه ده
- پدي کي بنيادي ارزښتونه اوديوګروپ عقيدوي ارزښتونه شامل دي .

داارزښتونه کيداي شي کټګوري شوي وي اوديوه نسل نه بل ته پاتي شوي وي.

پدي کي دمنطقي دخلکوثقافت ، عنعنه اورسم رواج مطالعه کيږي چي دکوم مذهب خلک دلته اوسيږئ ، کوم ضروريات لري ،کوم ډول توليد خوښوي اودکوم توليد په مقابل کي منفي عکس العمل ښکاره کوي.

### B. د مارکيټ طبقه بندي(Market Segmentation):

دلويو مارکيټوتقسيم بندي او ويش په وړو ګروپونوباندي مشتريانو او مصرف کوونکو د ضرورياتو،کرکترونواوروشونو مطابق ترڅوددوي ضروريات پوره شي او هم د کمپني او مولدينو دتوليداتو د خرڅلاولپاره چانس زيات شي .موليدين او کمپني مارکيټونه ددي لپاره ګروپ بندي کوي ترڅو وکولاي شي د

مشتريانو د ضروریاتو لپاره په کافي اندازه تولیدات اوخدمات په موثره او اقتصادي ډول وړاندي کړي. په عمومي ډول  Market segmentation په لاندي لویو ګروپونو باندي ویشل شویدي .

۱. (طبقه بندي د مارکيټ د مشتریانو په لحاظ) Segmenting consumer market

۲.(طبقه بندي د مارکيټ د تجارتي شغل په اساس) Segmenting Business market

۳. (طبقه بندي د مارکيټ د بین المللي په سطح)Segmenting international market

### ۱. (دمشتریانوپه اساس دمارکیت تقسیم بندي)Segmenting consumer market

پدي تقسیم بندي کي مارکيټ دمختلفو مشتریانو په اساس په مختلفو کتګوریو ویشي ترسو ترټولو غوره لاره دمارکیت د ساختمانونو لپاره ولټوي چه consumer segmentation market بیا په لاندي برخو ویشل شوي دي.

1) جغرافیوي ګروپ بندي **Geographic segmentation**
2) دنفوس په اساس ګروپ بندي **Demographic segmentation**
3) سیکالوژیکي په ګروپ بندي **Psychographic segmentation**
4) دسلوک په اساس ګروپ بندي**Behavioral segmentation**

## ۱. Geographic segmentation:

داګروپ بندي یا تقسیم بندي مارکيټ دجغرافیوي برخو په اساس ویشي لکه دسیمي ، ایالت ، مملکت ، براعظم ، ښارونو او کلیوالي سطحو باندي دمارکیت دسته بندي کوي . پدي اساس کمپني اومولدین تصمیم نیسي چي خپل تولیدات په یویا څو جغرافیوي سا حو کي تنظیم کړي ترڅو دمشتریانو دضرویاتو مطابق تولید وکړي اوخلکوته تولیدات وخدمات وړاند کړي اوداکمپني خپل تولیدات ،اعلانات ،خپروني اوعرضه یا دتولید  4p of production  کوي چي دخپل سیمي دضروریاتوبرعلاوه نورو ګاونډیو سیمو او هیوادونوته یي صادروي لکه د ایران اوپاکستان اکثره کمپني خپلوتولیداتو لپاره هدف مارکیت  Target افغانستان ټاکلي او خپل تولیدات مونږ ته صادروي.

Geographic segment density picture




**Demographic segmentation**. 2

مارکيټ دنفوس يا ديموگرافيک په اساس تقسيم بندي کيږي لکه دعمر ، جنس (نارينه ،ښځينه ) فاميلي اندازي ، فاميلي دژوند د وران يا life cycle،عايد يا income وظيفي، تحصيلاو مذهب او قوميت په اساس دمارکيټ په گروپونوويشلو ته ديموکرافيک سيگمنټيشن وايي .

چه داتقسيم بندي(ديموگرافيک) د consumer segmentation market يو دډيرو مهمو تقسيم بند يو ځخه شمير ل کيږي چي دتوليداتو استعمال اومصرف ديموکرافيکي تغيراتو پوري اړه لري يعني کمپني دديموگرافيکي فکتورنو په نظرکي نيولو سره خپل توليدات مربوطه سيمي ته عرضه کوي ديموگرافيکي تقسيم بند ي ځکه دير ضروردي چيديوي خوا احصايوي ارقام په لاس راځي او په اساني سره داندزي وروي هرکله چي مارکيت تقسيم بندي کيږي ضروردي چي دسيمي ديموکرافيک مطالعه شي اووروسته نو ر قواعد چي دمارکيت په سيگمنټ باندي اغيزه کوي مطالعه شي ترڅو دخلکو need want and demand مطابق خپل تارگيټ وټاکي مارکيټ مارکيټ ته توليد ات او خدمات وراندي کړي .




Demographic segmentation دالاندي فکتورنو په اساس د مارکيټ ويش په ګروپونو صورت نسيي.

الف : Age and life cycle ب. Gender segmentation

ج: Income segmentation

**الف.Age and life cycle په اساس دمارکيټ تقسيمبندي**:

دمصرف کوونکي ضروريات او غوښتني دعمر دمختلفو دروو په اساس فرق کوي نو په همدي اساس ځيني کمپني age segment استمعالوي اوپه مارکيټ کي ځانته تارګيټ ټاکي لکه ځيني کپمني teenager يعني د19-13کلونو عمر لرونکي مصرف کوونکي تارګيټ ټاکي اودهغوي دضرورياتو په مطابق خپل توليدات عرضه کوي

**ب .Gender segmentation دجنسيت په اساس دمارکيټ ويش**:

کمپني خپل توليدات دجنيست په اساس آماده کوي او مارکيټ ته عرضه کوي لکه دکوباي کمپني داوږ دي مودي راهيسي چي اکثره ځوانانو هدف قرار ورکړي او خپل توليدات کوي . همدارنګه د dove کمپني چي اکثراً دښځينو لپاره دارايش سامان الات اولوازم توليدوي .

 

### ج. Income segmentationپه اساس دمارکيټ تقسيم بندي:

داهم ديموگرافيک segmentدجملي څخه دي دا ډول تقسيم بندي چي دمشتريانو دعايداتو په اساس صورت نيسي دځيني کمپنيو له خوا داوړد ي مودي راهيسي استعماليږي چي اکثره لوي کمپني لکه دموټر جوړولو ،کشتيو جوړونکو کمپني ځيني الکترونيکي او کمپوټر جوړونکو کمپني چي دوي اکثراً ثروت مند او سرمايه داره خلک targetکوي او توليدات يي هم دجنسيت او کيفيت له نظره آرام مستريح لوازم توليداد کوي او په هر قيمت غواړي په دغه کتګوري مشتريان باندي يي خرڅوي لکه Mercedes Benzيا TOYOTAکمپني ياد NeimanMarcusکمپني چي په نړيواله سطحه او خاص خلک يي توليداتو تر اخستلو توان لري .چي داستراليا يو نوع زردالو چي په نړي کي دير مشهور دي په يو پونډ يي $20دالره کيږي د Neiman Marcusکمپني يي د توضيح او

نړيواله مارکيټونه ته عرضه وظيفه په غاړه لري .

 

:

يوفرانسوي کمپني چه د sham Payneپه نوم شرابو جوړ وي نړيواله شهرت لري او قيمت يي هم دنورو کمپنيو دتوليداتو څو برابره دي . همدارنګه زمونږ دهيواد دځيني وچي ميوي چي خارج ته ليږدول کيږي لکه بادام چي کاغذي او خشره يي سره فرق لري اکثره پاکستان اوهلته درجه بندي او سورت څخه وروسته دوبي او نورو ملکونوته صادريږي .

### :Psychologic segmentation-3

داګروپ بندي هم د Consumer market segmentation په اساس دخلک داجتماعي صنفونو فاميلي خواص دژوند طريقي په اساس دمارکيت ګروپ بندي کيږي. Lifecycle, social class, and family charactresticچي په يو

ديموګرافيک ګروپ کي خلک دمختلفو سيکالوژيکي خواصو لرونکي وي خوکمپني کوشش کوي چي دخلکو درويي او دژوند د طرزمطابق توليدات وړاندي کړي لکه دځونانو دعلاقي وړ توليدات متوسط سن لرونکو خلکو لپاره او لويانو لپاره په بل معيار اوديزاين توليدات وړاندي کړي. نو کمپني دپورته ګروپونو څخه يو يا څو تارګيټ ټاکي او خپل توليدات عرضه کوي لکه د هونډا کمپني چي ځوانان تارکيټ کړي دي

## 4 - Behavioral segmentation:

دسلوک په مطابق طبقه بندي دسلوک اوروش په اساس مشتريانوته توليدات اوخدمات وړاندي کوي چي دمارکيټ تقسيم بند ي دي چي دمشتريانو دمصرف کوونکو دعلميت پوهي او دجنس د استعمال قدرت په مطابق مارکيټ جوړول دي اکثره مارکيټران په دي عقيده دي چي سلوکي تغيرات دمارکيت دجوړولو لپاره دپيل ټکي دي اودخلکو دقدرت او وس مطابق توليدات بايد مارکيت ته عرضه شي.او په لاندي برخو ويشل شويدي.

### A.Occasion segment اکثره کمپني دوخت او موقع په اساس:

مارکيت په ګروپونو ويشي لکه ځيني دګلانو کمپني چي دخاصو مراسمو لکه دمور ورځ ، دعاشقانو ورځ اوداسي نو رلپاره خپل توليدات په معين موقع کي عرضه کوي همدارنکه زمونږ په هيواد کي دلوي اختر په ورځو کي د اکثره ولسواليو او کليوال خپل څاروي مندوي ته يا مارکيټته دخرڅلاو لپاره راوړي چي داهم داوکيژن segmentationيو ښه مثال دي ځکه چي اکثره خلک دقرباني لپاره څاروي اخلي .

  

### B. Benefit segmentation مارکيت ګروپ بندي دعايداتو دلاسته راوړلوپه اساس:

ګروپ بندي اومارکيت دفوق العاده ډولونو څخه دي چي يو خاصه کمپني دمشتريانو لپاره داسي توليد کوي چي دهغه کمپني څخه علاوه‌بل ير لږ چانس موجود دي چي ددکمپني په شان نوري توليد کړي لکه . داکمنټين انتي بيو تيک تابليت چي يو پاکستاني کمپني چه يواځيني کمپني ده چي دپاکستان اوافغانستان په سطحه دغه توليدات کوي اوداداسي يوقراردادلري چه تر شلو کلونو پوري ددي brandيا مارک په نامه بله کمپني داسي توليد نه کوي دغه

کمپني ددي انتي بيو تيک په ريسرچ کي ديره زياته پانگه لگول دي خواوس چي خپل توليد په هره بيه خرڅو ي دادهغه کمپني صلاحيت دي .

همدارنگه په ننگرهار کي دماهيانو پروژي ډيرو محدودي دي دوي په هرنرخ چي وغواړي خپل محصول خرڅولي شي ځکه چي تقاضاورته زيات دي .

**Loyalty segmentation .C:**دمشتريانو دخاصي علاقي په مطابق دمارکيټ تقسيم اوتوليد عرضه کولوته وايي چي ځيني خلک ديو توليد څخه په دوام داره توگه استفاده کوي چي اکثره کمپني خپل داعتبار اوهم دمشتريانو دوامداره ساتلولپاره دخپل توليد دکميت اوکيفيت ته خاصه پاملرنه کوي لکه دپيپسي کولا کمپني چي اکثره خلک يي (Brand ) نشان په اساس خاصه علاقه ورسره ښايي او دپيپسي کمپني دمشتريان تشويق لپاره په اکثره نړيوالو سپورټي سياليو کي خپل علانات تيروي چه دځيني ملکونو دټيمونو تمويل کوي ..........

**:User Rate .D**

١ . لږمصرف کوونکي

2. متوسط مصرف کوونکي

٣ . زيات مصرف کوونکي.

**E :User Status.**لکه

١. لمړي ځل استعمالونکي

٢. با قاعده استعمال

٣. نه استعمال

۴. زيات استعمال اونور...

Redness Stage .1 Aaware .2.Fخبر3. Non aware بي خبر 4. Informedمعلومات لرل 5. Interestedدلچسپي6. Desirous ارزومند

**Attitude toward product .Gروشدتوليدپه اړوند:**

Positiveمثبت

Negative منفي

Indifferentيوشان يا دواړه

## Segment business Market .i

### تجارتي مارکيت څه ته وايي؟What is business market?

ټولي هغه اداري اوکمپني چي اجناس او خدامات اخلي اوپه کاريي اچوي دتوليد لپاره کوم چي دغه اجناس بيا خرڅ ،په کرايه نوروته ورکړي ترڅو عايد په لاس راوړي او business market نسبت consumer market ته زيات اجناس او سرمايه پکار اچول کيږي .

**دبزنس يا تجارتي مارکيټ خواص**:

ii. دبل مارکيت څخه تقاضاء راويستل Demand driven

iii. داخستلو يوه برخه جوړول Nature of buying unit

iv. ديوي پروسي څخه وروسته اجناس اخستل Decision process

د تجارتي مارکيت اخستونکي په لاندي گروپونو ويشل شوي دي .

A. هغه څوک چه دمارکيت څخه په لمړي ځل يو څه اخلي .

B. هغه کسان چي ديو جنس دوباره اخلي خود لږتغير سره .

C. ديوجنس اخستل دپخواني قيمت کيفيت ا وکميت سره .

دتجارتي مارکيت تقسيم بندي کي اکثره مارکيټران او مصرف کوونکي متغيره اسباب اوطريقي استمعالوي ترڅو مارکيت گروپ بندي کړي

هغه کسانو چي اموال او اجناس دتجارت لپاره اخلي دلاندي فکتورنو په اساس تقسيم بندي کولاي شو.

۱. ديموگرافي

۲.جغرافيوي موقيعت

۳.دپخواني گټې

۴. داستمعالوونکي حالت له مخي تقسيم بنديشوي وي.

۵. داستمعالونکي داستمعال قابليت

۶. دجنس دمصرف سرهعلاقمندي .

چي تجارتي مارکيتران هم دمارکيت ويشلو لپاره ځيني لاري په کار اچولي لکه د مشتريانو دخواصو، مدني فکتورونه او حالتونه ، شخصي فکتورونه په اساس دمارکيت گروپ بندي کوي . چه ددي طبقه بندي په اساس مارکيتران مطلوب اجناس مربوطه سيمي ته عرضه اووړاندي کوي او په بدل کي يي عايدات لاسته راوړي .چه هميشه

يو کمپني دتجارت مارکيت لپاره فعاليت کوي . دمثال په دول يوه امريکايي کمپني ده چي شخصي کريدت کارتونه توليدوي او خپل تجارت په دري کتگوريو تقسيم بندي کوي .

1) تاجرانو لپاره
2) مشتريانو لپاره
3) واړه کاروباريانو يا تجارانو لپاره

يي يو بزنس مارکيت جوړکړي دي اودکمپني تاجران ته زياته توجه ساتي ترڅو کريدت کارتونه استعمال کړي او کمپني سره ارتباط ټينگ کړي چي ددغه کريدت کارتونو په واسطه کولي شي دامريکا په ټولو بازارونو کي دخريد اوفروش لپاره استفاده وکړي ........

## :Segmenting International Market

ځيني داسي محدود ي کمپني دي چي په نړيواله global(نړيوال) سطحه توليدات اوخدمات وړاندي کوي لکه Nokia PEPESI, Coca-Cola , sonny,کمپني چي دنړي ۲۰۰ څخه زيات ملکونو کي توليدات کوي لکه په افغانستان کي دکوکاکولا کمپني چه د کابل ولايت دباگرامي په ساحي کي هم يوه فابريکه موجوده ده چي توليدات يي ټول افغانستان ته ورکوي چه دايي يو نړيوال سيگمنتيشن دي دکوکاکولا کمپني لپاره .

.ټول نړيوال مارکيټونه داقتصادي فکتورونو مطابق گروپ بندي شويدي لکه ځيني ملکونه دنفوس دمجموعي عايد ځيني داقتصادي پرمختگ په اساس طبقه بندي شويدي . چي ځيني کمپني دپورته فکتورو په مطابق دخلکو دضرورت وړ توليدات کوي ترڅو له يوه طرفه دخلکو ضروريات رفع اودبل طرفه عايداتو په لاس راوړي دخپلو توليداتو دعرضي څخه .

ملکونه کيداي شي دشرکتونو عايداتو او قواعدو په اساس گروپ بندي شي کلتوري فکتورنه هم استعماليږي چي مارکيتونه په گروپونو وويشل شي لکه دعام ژبي ،مذهب ، سلوک اولياقت په اساس لکه دهند په بازارونو کي چي دغوايي غوښه خلک نه استعمالوي ځانته جدا بازارونه لري دنړي مارکيټونو په گروپ يا دستو ويشي دجغرافيوي اقتصادي سياسي او کلتوري اونورو فکتورونه په دي باور دي اوتکيه لري چي گروپونه دکلسترونو څخه جوړشويدي کله کله کمپني مختلفي طريقي چي د international market segment لپاره ستمعالوي کمپني داسي توليدات کوي کوم چه يو محدود گروپ خلک ورته خواهش او ضرورت لري اودنورو خلکو دتوليد لپاره ورڅخه صرف نظر کوي لکه ځينيکمپني دنړي ۱۳-۱۹کلونو عمر لرونکو تارکيت کړيدي چي تقريباً د نړي دنفوسو دريمه برخه جوړوي چه داگروپ مربوطه کمپني لپاره تارگيت دي چه د خريداري او تقضا گاني لري لکه دمکتب شاگردان .همدارنگه داسي خلک چي داخستلو يوشان سلوک لري ا و په مختلفو ممالکو کي او سيږي داهم د انټر نيشنل مارکيټ څخه نماينده کي کوي او کمپني داسي توليدات کوي چي ددي گروپ خلکو ضرورت اوغوښتني پوره کړي .

دمثال په توګه ( Mercedes Benzدنړي ثروت لرونکي تارکيت کړيدي اودنورو څخه صرف نظر کو ي خپل توليدات هغه مارکيتونو ته استوي کوم چي ددغي توليد مشتريان وي ضروري نده چي مشتريان زيات وي ياکم خپل توليد loyal consumers ته رسوي او خپل مشتريان په دوام داره توګه ساتي .

## (موثرطبقه بندي ته ضرورت)Requirement for effective segmentation:

په واقيعت کي زياتي لاري او طريقي موجود دي چه دمارکيت ګروپ بندي وشي مګر ټولي ګروپ بندي موثر نه وي .لکه مالګي دمصرف په اساس نه شو کولاي چه دتورپوستکو او سپين پوستکوپه اساس د مارکيت ويش نه شوکولاي ځکه د پوټکي رنګ د مالګي په استعمال کومه اغيزه نه کوي .

- Measurable:-دګروپ بندي اندازه ،سايز،دخريداري قدرت او نقشه بايد د اندازي وړ وي.
- Accessible:-ځان د مارکيت يوي برخي ته رسول ترڅو مشتري پيدا کړي.
- Substantial: - کمپني بايد لوي سايز ولري اوپه کافي اندازه دتوليد قدرت اوتوانايي پکي موجود وي .
- Deferential توليدات يي بايد دمارکيټ د نورو توليداتو سره دتفکيک وړ وي اوهم د کميت اوکيفيت له نظره سره فرق ولري.

Actionable:-سيګمنټ بايد ددي توانايي ولري چه مشتريان جذب کړي.

## Major segmentation for consumer market

### Geographic segmentation

**A**: world region - North America, west America, Middle East, Asia, Africa…
**B**: Countries - Afghanistan, China, Japan, India, Canada, Sweden.
**C**: City or metro size - under 5000, 10000, 20000, 25000, 500000.
**D**: Density - urban, suburban, rural.
**E**: Climate - northern, eastern, western, southern.

### Demographic segmentation

**A**. Age - under 6, 6-11, 12-19, 20-34, 35-49, 50-64+
**B**. Gender - male, female.
**C**. family size - 1, 2, 3, 4, 5, 10+
**D**. Family life cycle - young, single, married, married with children, children out Going older, no children, single fewer than 19….
**E**. Income - under 1000$, 1000$, 10000$, 20000$, and over…
**F**. Occupation - professional and technical, Manager, official, Doctor Engineer, teacher, student, former driver, home maker, UN employed.
**G**. Education - grade school or less, some high school, high school graduate,

College or college graduate, university or graduate.

**H**. Religion - Muslim, Hindu, catholic, protestant, Jewish, and others.

**I**. Race - Asian, European, block, white.

**J**. Nationality - Afghan, German, Russian, North America, Indian, japans, French, Italian.

## Psychographic segmentation

**A**. Social class lower lowers, upper lower, working class, Middle class.

**B**. life style Achievers, striver, survivor.

**C**. personality Compulsive, gregarious, authoritarian, ambition.

### Behavioral segmentation

Avocation: - regular occasion, special occasion.

B. Benefit: - quality, service economy convenience, speed.

User status: - non user ex-user, potential user, first-time user, regular user.

User rates: - light user, medium user, heavy user.

Loyalty status: - none, medium, strong, absolute.

Redness stage: -unaware, aware informed interested desirous intending to by.

Attitude toward product: - enthusiastic, positive, indifferent negative hostile.

## يولسم فصل

## دمارکيټنګ اطلاعات او تبليغات

## Marketing advertisement

### دمارکيټنګ اطلاعات او تبليغات

په مارکيټنګ کي د اطلاعات او تبليغات اصلي هدف دکرنيزو محصولاتو معرفي مصرف کوونکي ته اوپه هغوي کي ميلان او ګرايش ايجادول دجنس په اخيستلو کيدکرنيزو محصولاتو توليدونکي پدي تتيجه رسيدلي دي چي هغوي کولاي شي د تبليغاتو په واسطه دمصرف کوونکي تقاضا دجنس په اړوند زيات کړيمولدين او خرڅونکي لپاره ډيره ضروري ده چي دمارکيټنګ دوضعي څخه ځان باخبره کړي ترڅو دمارکيټنګ د تقاضا په اساس خپل توليد ، مقدار دعرضه، نوعيت دتوليد ، وقت دعرضي اوهمدارنګه خپل توليدي پلانونو عيار کړيزياتره تجارتي معاملات او قراردادونه د انترنت په واسطه صورت نيسي خريدار او خرڅونکي دانترنيت په واسطه تماس نيسي قرارداد مشخصات په موارد او همدارنګه دجنس دنموني او مشخصات ګوري او فيصلي ته رسيږي او جنس په معين وخت دمشتري په ادرس ليږل کيږي

### تبليغات دري عمده رول لوبوي:

A. دجنس معرفي او اخيستونکي ته او دجنس دکيفيت اوکميت په مورد معلومات ارايه کول

B. دجنس مثبت اړخونه اخستونکي ته ويل او دمشتري په ذهنيت کي دجنس په مورد مثبت تصور ايجادول

C. دمصرف کوونکي تشويق دجنس دخريد په مورد

### دتبليغاتو په مورد په لاندي ډول تحقيق صورت نيسي

۱- تحقيق دتبليغ دمحتوي په مورد (څه بايد وويل شي)

۲- تحقيق د تبليغ دکانالونو په مورد

۳- تحقيق د تبليغ د تاثيراتو په مورد

۱ - **دتبليغ محتويات**: پدي اړوند بايد د مصرف کونکي دخريد علاقه مندي وڅړل شي مثلاً د غوښي د پروسس کمپني بايد غوښي رول دانسان په صحت او سلامتي او د حيواني پروتين نقش د انسانانو په صحت او سلامتي کي په خپل تبليغاتو کي شامل کړي

۲- **تبليغاتي کانال**:جمعي ارتباطات لکه TV، راډيو، سينما، مجلات، اخبار داټول تبليغاتي وسايل دي چي ددغه چينلونو څخه دجنس په مورد تبليغات صورت ومومي

A– دتبليغاتي بوديجي متخصص بايد پوه شي چي تبليغ لپاره څومره پيسي ته ضرورت ده، څومره مطبوعاتوتي نشرات، څومره فاکس او انترنت ته ضرورت دي.

**۳- دتبليغاتو تاثير** :

**a**- دزيات تبليغاتو په واسطه د توليد او مصرف ترمنځ فاصله په تدريجي توګه کميږي او يودبل د حالاتو څخه خبريږي دخرڅلاو پيغام بايد په نږدي او لږي مارکيټونو کي مصرف کونکو ته ورسول شي، دجنس مزيت او ښه والي وښودل شي او دفروشاتو په کچه کي زياتوالي رامنځ ته کيږي

**b**- د تبليغاتو په واسطه په محصول کي بهبود رامنځ ته کيږي چي درقابت په ساحه کي وروسته پاتي نشي او همدارنګه د مصرف کونکي بي تفاوتي او بي توجهي د محصول په اړوند له منځه وړي

**c**- مګر اعلانات او تبليغات د جنس په مورد مصرف کونکي دروانې له لحاظه تر تاثير لاندي راځي او مصرف کونکي غواړي چي داسي يو جنس ترلاسه کړي چي دهغوي هويت او مشخصات څرګندوي

**d**- تبليغ د خبري رسني پواسطه ( اخبار، راډيو، TV ) يو قسم اګاهي د محصول په مورد مصرف کونکي لپاره ده چي دمحصول په مورد معلومات ترلاسه کوي

**e**- په تبليغ کي دمحصول مثبت خصوصيات په تکرار سره دعمومي شهرت او دمصرف کونکي د پذيرش سبب کيږي لکه د اوميګا ساعتونه، دهوخست داويه کمپني دواګاني چي دمکرر اعلاناتو په واسطه دنړي په سطحه کي معرفت پيداکړي او زياد خريداران لري

## داطلاعاتو اهميت په مارکيټ کي:

خريد او فروش، او دنرخونو تثبيت د مارکيټنګ اساس تشکيلوي

ټول دغه وظايف د مارکيټ دعدم معلومات په مورد، ډير مشکل دي نرخونه د مارکيټنګ عمده فعاليت تشکيلوي، د توليد موثريت او دمارکيټنګ فعاليتونه دنرخونو په موثريت پوري ارتباط لري او دنرخونو موثريت تبليغات او اطلاعاتو پوري اړه لري مارکيټنګ عمده فعاليتونه عبارت دي د اشياو او خدمتونو سرته رسول ضايعات مشتريانو ته رسول دي ددغه فعاليتونو سرته رسول د مارکيټنګ عرضي او تقاضا په مورد دقيق معلومات ترلاسه کول دي

## داشتهارات او تبليغات انتقال مربوط مراجعوته:

دمارکيټنګ د اطلاعاتو موثريت ترزياد حد پوري مناسب وخت پوري تړلي دي څرنګه چي شرايط د عرضي اوتقاضا په مارکيټ کي وقتاً او فوقتاً تغير مومي، هغه معلومات چي لس ورځي مخکي دمارکيټ په مورد پکارول شويدي لس ورځي وروسته هغه معلومات خپل اهميت له لاسه ورکوي ځکه چي هغه شرايط چي يو هفته مخکي په مارکيټ کي حاکم وو لس ورځي وروسته هغه شرايط به نه وي تبادلوي مارکيټ ( Exchange market) هر ساعت نوي

معلومات داسعارو دنرخونو په مورد ضرورت لري اوهمدارنگه دجنس دنرخونو په مورد دپرچون فروش مارکیټ هفته وار جدید معلوماتو ته ضرورت لري

**دمارکیټي اطلاعاتو حدود:** په یوه ټولنه کي چي په سل هاو مختلف کرنیز محصولات تولید کیږي او په یوه لویه ساحه کي توزیع کیږي، دموجودو نرخونو او راتلونکي نرخونو، دنوساناتو په مورد، دعرضي مقدار په مارکیټ کي او دجنس مقدار په گوداmونو کي دقیق معلومات ته ضرورت پیداکیږي

**مشکلات دنرخونو دمعلوماتو په مورد:**

دمعلوماتو راټولونه دجنس دنرخونو په مورد دهغه وخت داهمیت وړ ده چي دجنس مقدار دمشخص کیفیت سره، سورت او درجه بندي دنرخونو په راپور کي منعکس شي او واضح شي چي نرخ دکوم محصول دي، کوم درجه، کوم کیفیت اودکوم مارکیټ څخه نماینده گي کوي مثلاً دفارم نرخ، دعمده فروش نرخ، دپرچون فروش نرخ سره کاملا فرق لري په ځینو حالاتو کي دنرخ یواځي دمحصول نماینده گي کوي اوپه ځیني حالاتو کي نرخ دمحصول او مجموعي خدماتو کي چي په نرخ باندي صورت نیولي دي، نماینده گي کوي بناً دنرخونو دراپور دتهیه کولو په وخت کي ذکر شوي مطلب په پام کي وساتل شي.

**تشهیر** Advertising:

۱- **تشهیر**: کومه مشهور اداره چې د تادیه کولو په ذریعه په غیرشخصي ډول د خیالاتو، شیانو او خدماتو تعرف وکړي. دې ته تشهیر وایي.

۲- **په مستقیم ډول یا بلا واسطه پلورل**: په مستقیم ډول پلورل یا له یو څخه زیات متوقع خریداران په شفاهي ډول د شیانو پلورلو ته هڅول او د هغوی قانع کول دي.

۳- **په خرڅلاو کې زیاتوالی**: په خرڅلاو کې زیاتوالی د شیانو یا خدماتو د اخستلو او پلورلو د ډاډ په خاطر د لنډ وخت لپاره ترغیب او هڅونې عمل ته وایي.

٤- **ټولنیزې اړیکې**: د غوره پالیسۍ له مخې د خلکو سره د کمپنۍ ښې اړیکې ټینګول، مضبوط تصور پیداکول، د ناوړه واقعاتو او افواهاتو له منځه وړلو ته عامه تعلقات وایي.

د ایډورټایزینګ لفظ د لاتیني ژبې څخه اخستل شوی دی چې معنا یې کوم شي ته پام ور اړول دي. د تشهیر د ځانګړتیاوو او اصلي تصور څخه د خبرتیا لپاره د دې لاندې پېژندل شوو تعریفونو لوستل ضروري دي.

۱- امریکن مارکیټنګ انجمن د تشهیر تعریف داسې کړی دی: «د کومې معروفې ادارې لخوا له تادیه کولو وروسته، په غیر شخصي یا مشخصې طریقې سره د خیالاتو، شیانو او خدماتو څرګندولو ته تشهیر وایي».

۲- ویلم ستایتن د تشهیر تعریف داسې کوي: (تشهیر ټول هغه فعالیتونه په خپله لمن کې رانغاړي چې له مخې یې د خلکو په وړاندی غیر شخصي، ژبني او تصویري ډول د شیانو، خدماتو او خیالاتو د کوم معروف سپانسر لخوا له تادیه کولو وروسته څرګندونه وشي).

۳- ډیچر د تشهیر تعریف داسی کړی دی: (تشهیر د شیانو، خدماتو او خیالاتو په اړوند د مطلقو اطلاعاتو برابرول، له تادیه کولو وروسته د شیانو د خرڅلاو او یا د مناسب ملاتړ د لاسته راوړلو لپاره کېږي).

د پورتنیو تعریفونوله تحلیل څخه وروسته دا لاندي ځانګړتیاوي په ډاګه کیږي :

۱- څرنګه چې د تشهیر لپاره په میډیا کې وخت اوځاي ته اړتیا د ه ، د کومو لپاره چې پیسي تادیه کیږي .

۲- په تشهیر کې مفاهیمه تر ټولو چټک عامل دي چې تشهیر ته اجازه ورکوي ترڅو په سلګونو زره متوقع یا احتمالي خریداران په ډیر کم وخت کې خبر کړي .

۳-د شیانو تشهیر د راډیو ، فلم ، تلویزون او ورځپاڼو له لاري هم کیداي شي

۴- د تشهیرپه ذریعه په خلکو کې د شیانو د اخیستلو تقاضا پیدا کیږي

## د تشهیر موخې:

### ۱- اطلاع ورکول او پلورل:

د تشهیر ترټولو غټه موخه د خلکو خبرول او په هغو پلورل دي د تشهیر په ذریعه د شیانو له کټورتوب، استعمال، د ځانګړو خصوصیاتو، په نورو نمونو له غوره توب څخه په مطلق ډول مطلع کېږي. د تشهیر موخه دا هم ده چې د خریدارانو په چلند اغیزه وشي او د شیانو د خرڅلاو کچه زیاته شي.

### ۲- په مستقیم ډول پلورلو کې مرسته کول:

په مستقیم ډول پلورلو لپاره تشهیر هم د یوی وسیلې په توګه کارول کېږي، څرنګه چې د تشهیر په واسطه مشتریانو ته له مخکې نه د شیانو د خصوصیاتو په اړه خبر حاصلیږي نو له همدې امله د تشهیر پواسطه د شیانو د پلورلو لپاره زمینه برابریږي.

### ۳- د مشتریانو ډاډه کول او د هغوی شک لری کول:

څرنګه چې مارکیټ کې ګڼ شمېر شیان موجود وي په دغو شیانو کې د غوره کولو لپاره تشهیر د خریدارانو سره مرسته کوي او هغوی ډاډه کوي او دا تسلي ورکوي چې کوم معلومات چې د شیانو په واسطه شوي دي هغه سم دي، چې په دې سره د خریدارانو شک لری کېږي او د شیانو په اړه د هغوی ګډوډ خیالات سمون پیدا کوي.

**٤- د ویش چینلونه منظموي**:

د شیانو د تشهیر په هدفونو کې یو دا هم ده چې تجارتي متوسطین (عمده فروش، پرچون فروش) او ټول خلک د چینلونو په ویشلو کې کار کوي. هغوی ټول باید هوښیار اوسي، د تشهیر په واسطه چې د شیانو کومې ښیګڼې او موثرتوب ښودل شوی دی له هغې څخه د تشهیر په واسطه اوس ګټه اخستل کېږي.

**٥- د کمپنۍ لپاره ښه تصور پیداکول**:

د تشهیر په ذریعه کمپنۍ د خلکو په اذهانو کې د مثبت تصور پیداکولو هڅه کوي او د دې لپاره په داسې پروګرامونو لاس پورې کوي چې د ټولنې او مشتریانو د ګټې او حفاظت او بهبود سبب ګرځي.

**د تشهیر اهمیت**:

د بازار په سیستم کې تشهیر مهم رول لوبوي. تشهیر زمونږ په اقتصادي او ټولنیز ژوند کې تردې حده سرایت کړی دی چې دا اوس مهال زمونږ د ژوند یوه برخه ګرځیدلی ده.

د پیداکوونکي، پرچون فروش، مستهلکینو او ټولنې په لحاظ د تشهیر اهمیت مختلف دی.

۱- د پیداکوونکي لپاره د تشهیر اهمیت:

۲- د پرچون فروش لپاره تشهیر اهمیت.

۳- د لګښت کوونکي لپاره تشهیر اهمیت.

۴- د ټولنې لپاره تشهیر اهمیت.

**۱- د پیداکوونکو (مولدینو) لپاره تشهیر اهمیت**:

د پیداکوونکي څخه مراد اداري، تولیدونکی او مارکیټ ته د شیانو وړاندی کوونکی دی.

**الف: د پلورلو په پروسه کې زیاتوالی**:

څرنګه چې د تشهیر په واسطه ډېر خلک د شیانو په باب خبرتیا ترلاسه کوي ځکه نو تشهیر په خرڅلاو کې زیاتوالی راولي.

**ب: مستقله تقاضا**:

د ډېرو شیانو تقاضا کې تشهیر مرستندویه ثابتیږي .

**ج: په زیرمه کولو کې کمښت او د پانګې ژر راستنیدل** :

د تشهیر له برکته شیان په ډیره کچه خرڅیږي ، چې دهمدې پروسې په مټ سرمایه بیرته

راستنیږي . د زیات خرڅلاو له کبله خرڅونکي سره ډیر کم شیان په زیرمه کې پاتې کیږي .

**د: په بیو کې کمښت**:

د زیاتي تقاضا په وجه تولیدات زیات تولیدیږي او په زیرمه کې ډیر بدلون راځي، چې له همدي امله په تولیداتو د تولیدونکي لګښت کم راځي په همدي اساس په بیو کې دکمښت لپاره اساني وي.

**هــ -د وقار پر ځای ساتل**:

د منظم تشهیر په اساس په ډیره کچه د شیانو د پلورل کېدو له کبله په په پلورونکي کې د پور د تادیه کولو صلاحیت پیداکوي او په پلورونکي باندې د خلکو اعتماد زیاتیږي. تشهیر دپلورونکي د نیک نامۍ موجب ګرځي.

**و- سودا پلورلو په وړتیا کې زیاتوالی**:

د تشهیر پواسطه په مستقیم ډول پلورلو کې زیاتوالی راځي، ځرنګه چې د تشهیر په ذریعه خریدارانو ته د وړاندې نه د تولیداتو په اړه علم وي نو پلورونکي ته په پلوررولو کې اساني پیداکیږي او هغه په ښه ډول خریدار د شیانو اخستلو ته هڅوي.

**د کارکوونکو په مرال کې زیاتوالی**:تشهیر په کمپنۍ کې د کارکولو په اخلاقي رویه باندې مثبته اغیزه کوي. هغه اداري چې په غوره ډول د خپلو شیانو تشهیر کوي د داسې اداري په کارکوونکو کې د برترۍ احساس پیداکیږي.

**۲- د پرچون فروش لپاره دتشهیر اهمیت**:

**د ارتباط په وسیله**:له عوامو سره د ارتباط یواځینۍ وسیله تشهیر ده ، چې په همدې وسیله پرچون فروشان خلک د خپل شتون او له هغه ډول شیانو څخه چې دی یې تجارت کوي خبروي.

**د پانګې راګرځید نه**:پرله پسې او منظم تشهیر د شیانو د پلورلو او زیاتې ګټې باعث ګرځي.

**د کاروبار په لګښتونو کې کمی**:له دې کبله چې د تشهیر لګښت د تولیداداره ورکوي نو په دې برخه کې د پرچون فروش په لګښت کې سپما کیږي.

**په عزت او وقار کې زیاتوالی**:د تشهیر پواسطه د پرچون فروش په عزت او وقار کې زیاتوالی راځي. ځرنګه چې پرچون فروش د دغو شیانو کاروبار کوي او دا شیان د کیفیت په لحاظ غوره دي او په پراخه کچه یې تشهیر کیږي ځکه نو د کارخانه دار په شان پرچون فروش ته ګټه رسوي.

**۳- د مستهلکینو لپاره د تشهیر اهمیت**:

**د اخستلو اسانتیا**:د تشهیر عمل د لګښت کوونکو د اخستلو په عمل کې اسانتیا پیدا کوي. د تشهیر پواسطه مستهلکینو ته دا معلومیږي چې له کومه ځایه او په کومې بیې شیان خریداري کړي د شیانو په باره کې اړین معلومات د تشهیر څخه په لاس راځي چې په دې ترتیب د خریدارۍ په هکله پریکړه اسانه کیږي.

**د غير ضروري متوسطين اخراجول**:له دې امله چې د تشهر هدف په مستقيم ډول د مستهلکينو پام راګرځول دي ځکه نو د اضافي متوسطينو له منځه د وتلو باعث ګرځي چې په دې ترتيب سره دپلورونکي اداري لګښت کم او ګټه يې زياتيږي.

**مستهلکينو ته تعليم ورکول**:د تشهير په واسطه مستهلکينو ته په پخوانيو شيانو باندې د کنترول په حاصلولو کې مرسته کيږي او مستهلکينو ته د نويو شيانو او د هغې د استعمال په هکله تعليم او زده کړه ورکول کيږي چې په دې سره د مستهلکينو د ژوند کيفيت لوړتيا مومي.

**غوره کيفيت**:د تشهير په واسطه د شيانو د کيفيت او کوالټۍ د ښه کولو زمينه برابريږي. کله چې مستهلکين په دې ډاډ من شي کوم شيان چې دوی اخلي د لوړ کيفيت او د ښې کوالټۍ لرونکي دي، د کومو چې تشهير شوی دی نو هغوی د خريدارۍ عمل جاري ساتي.

**د مستهلکينو سپما**:د تشهير له موخو څخه يوه مهمه موخه د شيانو په ګټورتوب باندې د توجو تمرکز دی. کله چې مستهلک د کوم شي له کيفيت څخه ډاډه کيږي نو د دغه څيز په بدل کې زياتې بيې ورکولو ته هم چمتو کيږي خو که د خريداري په مهال هغه د دې خبرې څخه خبر شي چې د همدې خصوصياتو درلودونکی شی په کمه بيه سره ترلاسه کېدای شي نو هرومرو د هغې کمې بيې والا شی اخلي او دا د هغه لپاره د سپما باعث کيږي.

## ٤- د ټولنې لپاره د تشهير اهميت:

**په روزګار کې زياتوالی**:تشهير د خلکو لپاره د روزګار د برابرولو يوه وسيله ده د دتشهير په وجه په روزګار کې پراختيا راځي چې په توليداتو کې د زياتوالي باعث هم ګرځيدلی دی د دی ډېرو توليداتو د جذبولو لپاره د سترو مارکيټونو اړتيا ده. له پيداواري توکو سره د ټولو خلکو د اشنا کولو لپاره د تشهير اړتيا ده د تشهير په پروسه کې ډېر خلک په روزګار کيږي چې دا عمل د بې روزګارۍ له پای ته رسولو سره مرسته کوي.

**د چاپ يا نشر ازادي**:د پريس لپاره تشهير د عوايدو يوه مناسبه ذريعه ده. د عوايدو په واسطه نشرات خپل ازاد حيثيت برقرار ساتلی شي هيڅ ډول په اقتصادي فشار سره نه شي کولی چې نشرات څخه غلطه ګټه پورته کړي. که تشهير په منظمه او پرله پسې ډول وي نو د نشرات په بيه کې کموالی راولي.

**د ژوند د کيفيت ښه کول**:تشهير نه يواځې دا چې مستهلکينو ته زده کړه ورکوي بلکې د شيانو د استعمال او د روزګار لپاره د زمينې برابرولو يوه وسيله هم ده په هغه کې د ښه والي او بهترۍ له کبله کم بيې غوره کيفيت او مختلف شيان هم حاصليږي. دا ټول صفتونه د ژوند د کيفيت په لوړولو کې مرستندويه ثابتيږي.

**د تشهير ډولونه:**

**۱-د توليداتو او ادارو تشهير:**

د شيانو تشهير لکه څرنګه چې د نوم نه يې معلوميږي، کله چې مخصوص شيان او خدمات په غير مستقيم ډول ويلورل شي نو دې د توليداتو تشهير وايي.

په غير مستقيم ډول څخه هدف دا دی چې په هغې پرسونل برخه نه اخلي، بلکې د تشهير له لاری دا کار صورت مومي.

د ادارو د تشهير څخه هدف کله چې کومی کمپنۍ يا اداری د اعتبار، تصور، خيالاتو او فلسفی څرګندونه وکړای شي، نو هغې ته د اداری تشهير وايي. او دا ډول تشهير د عامه تعلقاتو په ډله کې راځي.

**۲- د مستهلکينو او تجارتي تشهير:**

کله چې د تشهير هدف د مشتريانو يا مستهلکينو تقاضا کې اضافه کول وي نو داسې عمل ته د مستهلکينو تشهير وايي. په دې ډول تشهير کې د کمپنۍ هدف لګښت کوونکي وي په داسې حال کې چې د تجارتي تشهير هدف د تجارتي متوسطينو په تقاضا کې اضافه کول دي. په دې ډول تشهير کې توليدونکي او منځګړی يې هدف ګرځول کېږي.

**۳- متناسب (پرتله ايز) او تقابلي تشهير:**

کله چې د محصولاتو د اوصافو موازنه په پرتله ايزشکل سره د تشهير په واسطه وکړای شي نو دې ته متناسب تشهير وايي. د دې په برعکس کله چې د يو ډول شيانو د جملې څخه د کوم شي د برترۍ په ذريعه مستهلکين قايل کړای شي نو دې تشهير ته تقابلي تشهير وايي.

**٤- وګړيز او ډله ايز تشهير:**

کله چې کوم کاروبار د تشهير لګښت په خپله برداشت کړي نو داسې تشهير ته وګړيز تشهير وايي د دې ډول تشهير هدف د تجارتي نښې پېژندنه، منل، او د کمپنۍ وقار او اعتبار جوړول دي خو چېرې د تشهير لګښت د مولد او تجارتي متوسطين په ګډه په غاړه واخلي دی ډول تشهير ته ډله ايز تشهير وايي.

**۳- ملي او سيمه ايز تشهير:**

د هېواد په سطحه يا ملي تشهير د عمده فروشانو او مولدينو پواسطه په لوړه کچه د شيانو د خرڅلاو په موخه صورت نيسي. په داسې حال کې چې سيمه ايز تشهير په يو ځانګړې سيمه کې ترسره کېږي.

**د تشهير وسايل يا رسنۍ:**

د تشهير وسيلې يا رسنۍ څخه هدف هغه لاره ده چې د هغې په واسطه تشهير کوونکی خپل پيغام اړوندو کتونکو ته رسوي په نني عصر کې تشهير کوونکي ته د تشهير بې شمېره وسايل موجود وي. د تشهير کوونکي لپاره دا کومه ستونزه نه ده چې د تشهير لپاره کومه ذريعه غوره کړي خو ستونزه دا ده چې تشهير فعاليتونه څه ډول سره يوځای او هم غږي کړي، ترڅو په اغيزمن ډول مواصلاتي ذرايع وکارول شي.

هغه ستر وسایل چې د تشهیر کوونکي په واک دي په لاندې ډول تشریح کېږي:

**۱- د مطبوعاتو په وسیله تشهیر:**

د پریس په واسطه تشهیر د چاپ شویو الفاظو په ذریعه کېږي او دا عبارت له ورځپاڼو، رسالو، جرایدو او مجلو څخه دی.

**الف- ورځپاڼې:**

په ډېر شمېر هېوادونو کې د اخبارونو په واسطه تشهیر ترسره کېږي او اخبارونه په ځایي، سیمه ایز او ملي کچه په مختلفو ژبو چاپ کېږي.

اخباري تشهیر په دوه ډوله کېږي:

**۱- توضیحي تشهیر:**

له دې څخه مطلب هغه تشهیر دی کوم چې د مختلفو حروفو یا تصویرونو سره ښکاره کوي ترڅو په سمدستي توګه لوستونکو توجه ځان ته راوګرځوي.

**۲- کلاسیفایډ تشهیرونه:**

هغه ډول تشهیرونه دي چې د عنوان یا څلور ګوټیز په واسطه ښودل کېږي.

د اخبارونو په واسطه د تشهیر یوه ګټه داده چې هرځای موندل کېږي.

**ب- کتاب او مجلې:**

له اخبارنو څخه پس مجلې او کتاب هم د تشهیر لپاره یوه اغیزمنه ذریعه ګڼل کېږي د اخبارونو په پرتله مجلې خاص خلک لولي او محدوده کچه خپرېږي. د مجلو او رسالو ډېر اقسام دي لکه تجارتي کتاب، ادبي کتاب، فلمي کتاب او د ماشومانو مجلې یا له دې کبله چې مجله او رسالو کې مواد زیات وي نو تر ډېره وخته پورې د لوستلو مرکز وي. مجلې د ښه او زړه راښکونکي کاغذ، او رنګین چاپ له کبله خلک خوښوي. په مجلو او رسالو کې د تشهیر چاپیدل ډېره اغیزه لري خو د محدود تیراژ د چاپیدو په وجه ورباندې لګښت ډېر راځي، څرنګه چې مجلې او کتاب په اونۍ یا میاشت کې یوځل خپرېږي ځکه نو تشهیري پیغام ژر بدلون نه شي موندلی.

**۲- نشراتي تشهیر:**

نشراتي تشهیر د راډیو او تلویزیون له لارې خپرېږي په اوسني دور کې راډیو او تلویزیون د شیانو د تشهیر په لړ کې اغیزمن رول لري او دا رول ورځ په ورځ مخ په زیاتیدو دی.

**الف- راډیو**:د راډیو په ذریعه تشهیر پیغام اوریدونکو ته رسول کېږي د راډیو له لاری تجارتي پروګرام د کارخانه دار لپاره د تشهیر په لړ کې بې شماره اسانتیاوې برابرکړي دي. د اخبارونو او مجلو په نسبت د راډیو له لاری تشهیر پیغام خپرول ډېر اغیزمن ثابتیږي د اواز او موسیقۍ په ذریعه اوریدونکي ترتاثیر لاندې راځي. د راډیو له لاری د تشهیر پیغام د خپرولو وخت ډېر کم وي. ډیر تولیدونکي او خرڅونکي د خپلومحصولاتو د تشهیر لپاره د راډیو څخه کار اخلي.

**ب- تلویزیون**:د اخبارونو او مجلو په نسبت راډیو او د راډیو په نسبت د تشهیر پیغام د خپرولو لپاره تلویزیون ډېره اغیزمنه ده ځکه چې تلویزیون هم اواز خپروي او هم تصویر، او د دې دواړو لیدل او اوریدل په خلکو ډېر تاثیر اچوي. د تلویزیون له لارې تشهیر توضیحي بڼه غوره کوي. تلویزیون د تشهیر یوه ګران بیه ذریعه ده. د راډیو په پرتله خلکو ته د هغې رسیدل په محدود کچه وي خو د شیانو د تشهیر په وسایلو کې تلویزیون ډېره د اهمیت وړ ذریعه ده.

## ج- د پوستي په ذریعه تشهیر:

د ډاک په ذریعه تشهیر پیغام د احتمالي خریدارانو کورونو او دفترونو ته په مستقیم ډول رسول کېږي. د ډاک په ذریعه تشهیر کې لیکونه، پوستې کارډونه، کیتلاک او کتابچې شاملې دي. د نورو ذریعو په څېر د ډاک په وسیله تشهیر هم ګټې او زیانونه لري، چې په لاندې ډول توضیع کېږي.

۱- په دې کې ډېره سهولت، ځکه پیغام په مستقیم ډول هغه ځانګړو کسانو ته رسول کېږي چې د شیانو اخستلو سره دلچسپي لري.

۲- کم لږګښته وي.

۳- په شخصي ډول وړاندیز کېږي.

۴- په هغې کې د وخت او ځای تبدیلي نه راځي او په بشپړ ډول د پیغام وضاحت په کې کېدای شي.

## ۳- د دروازې نه بهر تشهیر:

په دې ډول کې پوسټرونه او بینرونه شامل دي. پوسټرنه په دیوالونو باندې لګوي، بینرونه او پوسټرونه په ټولیز ډول لارو او واټونو کې ځوړند وي ترڅو لارویان یې په اسانه سره ولولي. په ځېنو هېوادونو کې ځایونه ورته انتخاب شوي وي، د مشتریانو توجه په سمدستي توګه رااوړي ځکه خلک له دغه ځایه د تیریدو راتیردو په مهال هغه بیا بیا لولي.

## ٤- د اسکرین په ذریعه تشهیر:

په دې ډول تشهیر کې لاندې طریقې شاملې دي:

### ۱ - فلم(Film):

د ځېنې کمپنۍ د تشهیر لپاره د سینماګانو څخه کار اخلي. د فلم د شروع کېدو څخه دمخه او له وقفې نه وروسته اشتهارات ښودل کېږي، په دې ډول اشتهاراتو کې د خلکو د تفریح لپاره مناظر هم ښودل کېږي.

### ۲- وينډو ډريسنګ Window dressing:

دا هم د تشهير يو مهمه وسيله ده. د تشهير په دې طريقه کې دوکاندار يا اداره د مستهلکينو د متوجه کولو لپاره په مغازه کې د ښيښو په الماريو کې شيان ږدي. ترڅو مغازې ته تلونکي راتلونکي خلک هغه ووينې څکه کله کله مشتريان د کوم شي د اخيستلو اراده نه لري خو کله چې کوم شی په پورته ډول ووينې او خوښ يې شي سمدستي يې د اخيستو نيت کوي.

### ۳- ننداړتون:

د شيانو ننداړتون پرانستل يا تجارتي ميله هم د شيانو د تشهير د ذريعې په توګه استعماليږي. دا ډول ميلې په پراخه کچه په مرکزي ځايونو کې جوړيږي. په دې ډول نمايشونو کې کاروباري ادارو ته د خپلو حريفانو د ځانګړتياوو، د پلورلو طريقو، کيفيت او تخنيک په اړه معلومات ترلاسه کېږي.

### ۴- د انټرنيټ په ذريعه تشهير:

د نن ورځې په نويو او پرمختللي عصر کې نړيوالې سوداګريزې ادارې د انټرنيټ په واسطه د خپلو شيانو تشهير کوي. دا د نړۍ ترټولو نوی او چټکه د ارتباط ټينګولو ذريعه ده، د راډيو او تلويزيون په اندول د انټرنيټ له لارې خلکو ته د تشهير رسيدل محدود وي يعنې محدود خلک ورته لاس رسی لري.

### د تشهير پيغام ترتيبول:

په تشهير باندې ډېر لګښت کول د دې ضمانت نه کوي چې د تشهير عمل بريالی دی، تشهير کوونکی په يو وخت په يوه اندازه پانګه د تشهير په برخه کې لګوي خو د هغې د تشهير نتايج مختلف وي. څېړنو ښودلې ده چې د تشهير کاميابي په ډېر لګښت نه ده بلکې دا کار د پيغام په ترتيبولو سره تړاو پيداکوي، پيغام بايد زړه راښکونکی، ښکلی او د پام راړولو وړتيا ولري. د پيغام ترتيبولو دعمل کولو لپاره د درې مرحلو په پام کې نيول شرط دي.

- د پيغام ترتيبول
- د پيغام ارزول او غور کول.
- په پيغام باندې عمل کول.
- د تشهير ذريعې غوره کول

په تيرو پاڼو کې د تشهير په ډولونو باندې بحث وشو. له دغه بحث څخه دا څرګنديږي چې تشهير کوونکو لپاره د تشهير بې شمېره ذريعې شتون لري. کله کله د دغو څخه د يوی غوره کول ډېر ستونزمن شي خو کله چې تشهير کوونکي غواړي مناسبه ذريعه د تشهير لپاره غوره کړي لاندې عوامل دی پام کې ونيسي:

- دمحصولاتو نوعيت

- د مارکیټ حجم
- د مشتریانو د تعلیم کیفیت
- دمشتریانولګښتونه

**د تشهیر هدف** :

**۱- دمحصولاتو نوعیت**:

د شیانو د تشهیر د ذریعې انتخابول په هغو شیانو پورې اړه لري چې تشهیر یې کېږي.

**۲- د مارکیټ حجم**:

که چېرې مشتهر غواړي چې د محصولاتو تشهیر د هېواد په سطحه وکړي نو د دې لپاره داسې ذریعه لکه راډیو تلویزیون یا ملي اخبارونه او که چېرې د شیانو مارکیټ حجم کم وي نو د هغې تشهیر د ځایي اخبارونو او ډاک په واسطه کوي.

**۳- د مستهلکینو د تعلیم کیفیت**:

که چېرې د پام وړ مارکیټ په تعلیم یافته مستهلکینو مشتمل وي نو د هغوی لپاره تشهیر باید ورځپاڼو، اوونېزو، مجلو او په زړه پورې اړوند خپریدونکو مطبوعاتو ته ورکړای شي، خو که چېرې له مارکیټ سره د بې سواده مشتریانو سروکار وي نو د شیانو د تشهیر لپاره باید د راډیو تلویزوین څخه کار واخستل شي.

**٤- د تشهیر لګښت**:

د تشهیر د ذریعې ټاکلو کې د تشهیر لګښت مهم عنصر دی. د تشهیر د ذریعې د غوره کولو په مهال بایدد لګښت اندازه معلومه شي، چې په کومه ذریعه باندې څومره لګښت راځي او د ذرایعو په منځ کې د لګښت څومره توپیر موجود دی. په عام ډول راډیو تلویزیون ګران بیه ذریعه ګڼل کېږي.

## دولسم فصل

## د نړیوال تجارت

## International Trading

خارجي تجارت په حقیقت کي دشیانو ، اجناسو او سرمائي انتقال ده دیو ملک څخه بل ملک ته او یا په بل عبارت دهیوادونو ترمنځ په یو زماني واحد کي ذکرشوي معاملاتو ته نړیوال تجارت وائي چه دهغي دحجم دمعلومولو لپاره وخت ذکرکیږي نو ځکه تجارت دعایدپه توزیع ، پس انداز په زیاتوالي ، دسرمایه ګذاري په زیاتوالي ، دمصارفوزیاتوالي ،دتکنالوژي دسطحي لوړوالي ، درفاهیت دسطحي په لوړوالي ،دکمیت او کیفت په لوړوالي کي مهم رول لري او تجارت تل په اقتصاد باندي مثبت تاثیرات لري . دیوهیواد دنړیوال تجارت زیاتوالي له یو طرف څخه دملک د داخلي اقتصادي ظرفیت دلوړوالي ښکارندي ده چه ددوي تولیدات په خارجي تجارت کي دپام وړګرځیدلي او دبلي خوا خارجي تجارت دنوموړي هیواد دخو دکفایي حالت ښکاره کوي او همدارنګه دخارجي تجارت تولیدات دنورو هیوادونو دتولیداتو سره درقابت ښکارندوي دي همدارنګه خارجي تجارت ددي ښکارندوي ده چي نوموړي تولیدات ددوي له داخلي ضرورتونوڅخه زیات دي یعني خارجي تجارت په صورت کي اضافي تولیدبهرنیوهیوادونوته صادریږي اوپدي طریقه نوموړي دخپلي مجموعي دزیاتوالي لپاره اضافي اجناس نوروهیوادونوته انتقالوي .

**تجارت ډولونه**:

- ❖ داخلي تجارت
- ❖ خارجي تجارت

۱ - **داخلي تجارت**:عبارت دهغه تجارت څخه دي چي د هغه په ترڅ کي دهیواد په دننه کي دخلکوتر منځ داجناسواخستل اوخرڅول صورت نیسي په داخلي تجارت کي داموالو انتقال دهیواددسرحداتوڅخه دباندي صورت نه نیسي یعني یواځي دهیواددسرحداتوپه دننه کي داتجارت ترسره کیږي اودخارجي تجارت په پرتله ئي ستونزي لږي دي .

**داخلي تجارت په دوه ډوله دي**.

الف : عمده فروشي ب : پرچون فروشي.

۱. **پرچون فروشي**:عبارت د هغه تجارت څخه دی چه په هغه کي د اجناسو اخیستل او خرڅول په کمه پیمانه سره صورت نیسي .

۲. **عمده فروشي**:هغه تجارت دي چي اجناسو اخيستل اوخرڅول په زياته پيمانه سرته رسيږي.

**۲-خارجي تجارت**:دتاريخ په ابتدائي دوره کې دانسان ضرورتونه ډير محدوده اوساده وه اوهغوېدي سلسله کې ترډيره حده خودکفاوه څه وخت چې انسان ترقي اوپرمختګ وکړ دهغې سره سم دهغوې په ضرورتونوکې هم اضافه والي رامنځته شوه اوبالاخره يوداسې مرحلي ته ورسيده چې انسان دخپل ضرورتونودرفع کولوپه خاطر دنورومحتاج شودغې محتاجې تجارت رامنځته کړوداتجارت دکورنيوڅخه شروع اوقبيلوته ورسيده دوخت په تيريدوسره په انساني ضرورتونوکې دومره زياتوالي راغې چې اوس يوه قبيله يوهيوادکه هرڅومره پرمختللي وې په اقتصادي نګاه په خپلوټولوضرورتوکې خودکفاً کيداي نشي پدي اساس دخپل ضرورت وړډيرشيان دنوروهيوادوڅخه لاسته راوړي اوخپل احتياجات پري رفع کوې ددغه احتياج په وجه دمختلفوهيوادونوترمينځ تجارت رامنځ ته شوچې دغه تجارت ته خارجي تجارت يانړيوال تجارت وائي.خارجي تجارت کولي شوپه لنډه ډول داسي تعريف کړوچې خارجي تجارت عبارت دهغه تجارت څخه ده چې په هغې کې ددوه مختلفوهيوادونوداوسيدونکوتجارانواوسوداګرانوترمنځ داجناسو اوخدماتوتبادله صورت نيسي ياپه بل عبارت ټولي هغه تجارتي اړيکي چې ديوه هيواددسرحداتوڅخه دباندي صورت نيسي عبارت دخارجي تجارت څخه دي

**خارجي تجارت په دوه برخوويشل کيږي .**

الف : صادرات

ب :واردات

**الف - صادرات**:ټول هغه اجناس چې ديوهيوادپه داخل کې توليديږي نو روهيوادونوته ئې انتقال صورت نيسي عبارت دصادراتوڅخه دي اوکوم هيوادچې داجناس ا وخدمات صادروې هغه ته صادرونکی هيوادوايي لکه افغانستان چې وچې اوتازه ميوي صادره وي .

**ب - واردات**:ټول هغه اجناس اوخدمات چې دنوروهيوادونوڅخه يوهيوادته داخليږي عبارت دوارداتوڅخه دي لکه افغانستان چې دغه خوراکې شيان ،داغوستلوشيان اوداسي نور دبهرنيوهيوادونوڅخه واردوې .

**په بهرنيو هيوادونو کې داجناسو د خرڅولو طريقي**:

کله چي يوتجار خپل اجناس په خپل هيوادکې په ښه قيمت خرڅ نه کړي اويااجناس دصادراتولپاره توليد شوي وي نوکوشش کوي چي دا اجناس بهرنيوهيوادونوته صادرکړي ترڅوهلته په مناسب قيمت وپلوري اوګټه ترلاسه کړي په بهرنيوهيوادونوکې داجناسودخرڅولولپاره دهغوهيوادونودخلکودخوښې په عاداتورسم اورواج اومارکيټونودحالاتوڅخه په مکمل ډول معلومات بايد تجار په لاس کي ولري .يوتجارته بايد دامعلومات وي چې کوم

هیوادتـه هغـه امـوال صـادروي دهغـوي تجـارتي پالیسـي څرنګـه ده کـه چیـري یوتجارتـه دهغـه هیواددتجـارتې قـانون پـه هکله پوره معلومات نه وې نوهغه تجاردګټې پرځاي دضررسره مخامخ کیږي

## په بهرنیوهیوادونوکې په مناسب قیمت باندي داجناسوخرڅول په لاندي طریقو سره صورت نیسي:

۱. **تشــهیر**:پـه بهرنیوهیوادونـوکې داجناسـودخرڅولولپاره دادتولوطریقوڅخـه اسـانه اوکـم مصـرفه طریقـه ده پـه کـوم هیوادکې چې تجارخپل اموال خرڅول غواړي نودهغه هیوادپه مجلو،اخبارونو، رادیو، تلویزون باندې دخپلواجناسوپه هکلـه پـه مـوثره طریقـي سـره اشـتهارورکول اوخپـل امـوال خلکوتـه معرفـي کـول اودخلکوپـه ذهنونـوکي ددي جـنس داخستلوضرورت پیداکول دتشهیرپه واسطه صورت نیسي اوهـم دهمـدي لاري پواسطه کولاي شـي دخپلواجناسـوپه هکله دخلکواعتمادحاصل کړي اوپه مناسب قیمت خپل اجناس په خارجي هیوادکې وپلوري .

۲. **تجارتي سفرونه**:ځني وختونه تجاران دخپل مال دخرڅولولپـاره بهرنیوهیوادونوتـه سفرکوي اوهلتـه دتجارانوسره ملاقاتونه کوي اودخپلواجناسوپه هکله هغوي ته پوره معلومات ورکوي یوتجارپدي طریقه دخپلواجناسوښـې ښـه والـي په ګوته کوي اودهغوي څخه غوښتن لیک ترلاسه کوي .ددي نه علاوه کله چې دیو هیوادتجارتي سفرونه کوي نودهغه هیواددخلکورسم اورواج عاداتواوفیشن په هکله پوره معلومـات ترلاسـه کـوي پـدي ډول یوتجـار ددي جوګـه کیږي چې خپل اموال دهغـه هیواددخلکودغوښتنو، رسم اورواج سره عیـاروي دتشـهیرپه نسبت پـه تجـارتي سفرونه بانـدي ډیـر مصارف راځي ولي دتشهیرڅخه ګټور واقع کیږي .

۳. **سفري نمایند ګان**:کـه چیـري یوتجارونشـي کولاي چې پـه خپلـه دیوهیواددوره وکړي نوپـدي صـورت کـي خپـل ســفري نماینــدګان تــاکي اوبهرنیوهیوادونوتــه ئــي لیــږي ســفري نماینــدګان دیوتجاردنــده ســرته رســوي تجاردخپلواجناسونموني ورکوي اوهغوي یي هلته تجارانوته ښیي پدي طریقـه یوتجارخپـل امـوال بهرنیوهیوادونـوکي خرڅوي.

٤. **بهرني نمایـنـدګي**:ځني وختونـه پـه بهرنیوهیوادونوکي دخپلواجناسودخرڅولولپاره هلتـه یوه ښـه نمایندګي دنمایـنده په حیث مقرروي اوبیاددي نمایندګي په ذریعه خپل اموال خرڅوي کله چې یوه نمایندګي یي دنمایـنده پـه حیث مقرره کړه نوبیا تجارپه مستقیم ډول خپـل اجنـاس نشـي خرڅـولي بلکـه ددي نمایندګي پـه ذریعـه خپـل اجنـاس خرڅولاي شي اودغي نمایندګي ته تجار تعین کړي فیصدي دګټه کمیشن په شکل تادیه کوي.

## ۵: په بهرنیوهیوادونوکې دڅانګو قایمول:

کله چې په یوخارجي هیوادکې دیوتجارمال په ډیره لویه پیمانه خرڅیږي نوبیادمال دخرڅولولپاره هلته دخپل کاروبار یوڅانګه قایموي اوپدي طریقه خپل اموال په بهرنیوهیوادونوکي خرڅوي په دي طریقه ډیرمصارف راځي ولي دمال دخرڅولولپاره ډیره موثره ده .

### ٦: په خارجي تجارت کي دقيمتونوډولونه:

په خارجي تجارت کي داجناسوکوم قيمت چې تعينيږي ځني وختونه په هغه نورمصارف هم ور علاوه کيږي چې پدي ډول د قيمت مختلف ډولونه رامنځ ته کيږي کله چي د صادرونکي او واردونکي ترمنځ داجناسود کيفيت مقداراوقيمت په تاديه کولوموافقه راشي نوددي خبري فيصله هم کيږي چې صادرونکی په کوم قيمت سره اوپه کوم ځاي کې اموال ورکوي په خارجي تجارت کي دموقعيت په نظرکې نيول سره ديوجنس مختلف قيمتونه رامنځته کيږي چې دهغې څخه مهم يي په لاندي ډول دي .

### دنړيوال تجارت اهميت په اقتصادي پرمختيا کي:

پدي برخه کي لومړي دپرمختيائي هيوادونوهغه ادعا اوتيوري مطالعه کوو چي وائي نړيوال تجارت په اقتصادي انکشاف کي برخه نه اخلي او وروسته په نوي سکونت ځايونوکي لکه ((امريکا اواستراليا)) چي په ۱۹ پيړي کي ئي دترقي لپاره کارکړي نړيوال تجارت د((پرمختګ دماشين ))په حيث مطالعه کوو او په هغه دليلونوباندي بحث کووچې وائي دغه وضعيت اوس پرمختيائي هيوادونوکې صدق نه کوي .بالاخره ګوروچي نړيوال تجارت ددي هيوادونوپه اقتصادي انکشاف کي تر يوي اندازي پوري برخه واخلي .

### په پرمختګ کي دتجارت سهم :

اوس هم دنړيوال تجارت په تيوري کي فکرکيږي چه دملکونو ترمنځ تجارت ځيني ګټي لري .دتجارت له لاري ديوهيوادمنابع په ښه ډول ځاي پرځاي کيږي ، له اقتصادي صرفه جويي څخه استفاده کيږي اوداسي يوه توليدي مقدار ته رسيږي چي باکفايته وي.

اوهمداچيتجارت دهيوادونو ترمنځ دبازاردپراختياسبب ګرځي،دکارتقسيم دهيو ادونوترمنځ زياتيږي اوپرمختيايي هيوادونوته دسرمايي اوتکنالوژي دانتقال سبب ګر ځي. دصنعتي اجناسو په واردولو سره په د اخل کي دداخلي خامومواداوانتقال ته تقاضا زياتيږي اوخارج ته دساده صنعتي اجناسودصادريدو باعث ګرځي.همدارنګه ازاد تجارت دانحصارمخه نيسي چي داقتصادي کفايت ضدده اوروستني دليل يي دپر مختللوهيوادونوسره ددي هيوادونو دتجارت دوام ګڼل کيږي .که واقعاً تجارت کومه ګټه نه لرله نوولي اوس هم دغه هيوادونوتجارت ته ادامه ورکوله.شايدچي دتجارتي ګټي په توضيح کي د پر مختللو او پرمختيايي هيوادونو ترمنځ اختلاف وجودولري.اما دتجارت دقطع کولو پر ځاي بايد وګورو چي دغه ستونزي يا اختلاف څر نګه حل کړو.

### دخارجي تجارت رول په ملي اقتصاد کي:

اکثره مخ پروده هيوادونه دزراعتي موادو توليدوونکي اوهم صادروونکي دي او هم دپرمخ تللو هيوادونو لپاره دخامو موادو توليد کوونکي دي .داډول صادرات ددغو ملکونوډيرمحدود زراعتي يا خام صنعتي مواد تشکيلوي اوداډول

اموال په نړيوالو بازارونو کي هميشه دتعويضي رقابت او ناتوانائي کي قرارلري او بعضي وختونه دبعضو حوادثو او بحراناتو له امله ددغه ډول هيوادونو صادراتي اجناس دماتي سره مخامخ کيږي .

اودزياتو اسعارو په بدل کي له هيوادڅخه بهروځي خارجي تجارت دډيرو نورو مهمو اقتصادي سکتورونو په څنگ کي يوه عمده تاثير او رول داقتصادي انکشاف د درجي په جوړښت او شکل کي لري دخارجي تجارت په رابطه او اقتصادي انکشاف بعضي وخت دتوسعي او پراختيا باعث کرځي او کله هم د اقتصادي پراختيادضعيف کيدوباعث گرځي . او هم بايد وويل شي چي دخارجي اوداخلي تجارت موثر عوامل دتجارتي امورو په څرنگوالي هم موثروي چه اصلي عاملين دتجارت تاجران ، دلالان ، کميشن کاران ، تجارتي نماينده گان اونور تشکيلوي اوددوي فعاليتونه ديوطرفه ددوي لپاره دګټي باعث گرځي دبله طرفه داموالواوخدماتوراکړه ورکړه اوانتقال دهغوي په واسطه دمولد مستهلک اوديومولد نه بل مولد ته ددو ي په واسطه صورت نيسي چي د دغه فعاليتونوپه نتيجه کي توليداوملي عايدزياتيږي زمونږ هيواددڅوکالونوراهيسي دنورومخ په ودي هيوادونوپه څيرهم مولداوهم صادرونکي دزراعتي مــوادودي .چي ددغواموالوتبادلــه پــه زياتــه انــدازه دســرمايوي اواســتهلاکي اجناســودواردېدوباعث گرځــي ددي باوجودئي افغانستان په وچه پوري تړلي يوهيواددي اوهم ترانزيتي مشکلات لري ولي ددوي باوجودنظر په جغرافيوي موقعيت هغه خپل اهميت دهروخت لپاره ساتلي شي ولي ځيني نوروعوامل لکه جنگونه اقتصادي بحرانونه ،غيرمترقبه موسمي حوادث ،سياسي اواقتصادي مناسبات اونوروزمونږ دهيوادخارجي تجارت متضرره کوي اوعمدتاً زمونږلاسته راغلي عوايددعنعنوي زراعتي محصولات څخه په خارج کي هغه لپاره ارتجاعيت زيات دي اوهميشه دغيرثابتي تقاضاسره مواجه دي .

### دنړيوال تجارت سياستونه:

په نړي کي هيڅ يوهيوادونروهيوادونوسره دتجارتي روابطوپرته پرمختگ نه شي کولي نوسوال دادي چې بهرني تجارت دهيوادونوپه اقتصادي پرمختگ کې څومره اهميت لري ياپه بل عبارت تجارت دهيوادونوپه داقتصادي پرمختگ کي څومره برخه اخستلي شي دکلاسيکانواوځني نوروپه نظرنړيوال تجارت دټولني داقتصادي پرمختگ دانجن په حيث معرفي شوي دي مګرنن ورځ داقتصادي کفايت په زياتوالي ،له توليدي عواملوڅخه ګټوره استفاده ،ديناميکو اثراتوپه جوړښت ،دروابطوپه پيداکيدواوبالاخره پرمختيايي هيوادونوته دپانگي جريان دتجارت له سهم څخه انکارنشوکولي امااددي ګټورڅنګ نړيوال تجارت ځني ستونزې هم لري په هغه صورت کې چې مناسب وسايل پدي برخه کې تراستفادي لاندي ونه نيول شي .همدارنګه ددوه ګوني اقتصاد پيداکيدل ،دعايد اوتکنالوژۍ په پراختياکې دهيوادونوترمنځ داختلاف ،دپرمختيائي هيوادونودتجارتي نسبت خرابوالي ،ددي هيوادونوپه صادراتي عوايدوکې داستقرارنشتوالي ،په داخلي اوخارجې تجارتي سياستونوکې دتوازن نه موجوديت ((دصادراتوزياتوالي اودوارداتو تعويض ))کي چي نړيوال تجارت نسبت ورکوونکي ګڼل کيږي .

